## سریزه

د تخارستان د تاریخي ولایت بغلان د پلخمري په(۱۵) کیلـومتری کې له سرهٔکوتله په۱۹۵۱م کال کې د لارې جوړولو پر مهال پـه یونـاني لیکدود یو ډېر لیک وموندل شو، چـې هلتـه د فرانسـې د لرغونپـوهنې د پلاوي د کیندنو د دوام لامل شو او په ۱۹۵۲- ۱۹۵۳م کلونو کې د موسیو دانیل شلوم برژه په لارښوونه له هماغه ځایه د کوشاني پېـر د یـوهٔ لـوی معبد آثار له یو شمېر ډېر لیکونو،پړیو (مجسمو) او سـیکو سـره وموننـدل شول.

له دې لرغوني معبده د اورتون او سپېڅلي اور آثار هـم تـر لاسـه شول، چې د جوړېدا نېټه یې د نومـوړي پـلاوي غـړي د کوشـاني پېـر لومړی ګڼي. دا تاریخي ودانۍ وروسته د ۲۴۰م شاوخوا د سوځېدنې لـه امله له منځه تللې، چې نښې یې له کیندنو څخه ښکاري. د موسیو شـلوم برژه د وینا له مخې دا اورتون د یوناني معبدونو په څېـر د پړیـو درولـو ځای نه و او د بودایي پېر د پاتېشونو په څېر یې بودایي یادګارونه هلته نه ساتل، بلکې هلته سپېڅلی اور ساتل کېـدهٔ. تـر زردشـت ۶ یـا ۷ پېـړی وروسته یې هم هماغه اېر (د ډېر لیک له متن سره سـم: د پښـتو اور) پـه دې معبد کې بلا وهٔ، چې تاریخ یې د ساسانیانو په دوره کـې د مزدیسـنا دین تر سمون د مخه دی. دا اور لمانځنه په بشپړ ډول سـیمه ییـزه بڼـه او رنګ لري.



د (بغلان) د سرهٔ کوتل اورتون په افغانستان کـې د اور لمـانځنې د دین لومړنی موندل شوی معبد دی. پوهانو د هغه د آثارو له کتنې داسـې پایله اخیستې ده، چې په افغانسـتان کـې د کوشـانیانو د پېـر د ځـانګړو فرهنګي، هنري او ادبي ځانګړنو اسـتازیتوب کـوي. د لاس تـه راغلیـو ډېرلیکونو ژبه یوه هېوادنۍ اوسیمه ییزه ژبه ده.

ترټولو مهم او مفصل ډېرلیک له دې معبد څخـه د ۱۹۵۷م کـال د می پر۷ نېټه لاس ته راغلی (کېڼه خوا یې ۱۱۷ سانتي متره، ښې خـوا یـې ۱۱۰ سانتي متره، پورتنی خوا یې ۱۳۲ سانتي متره او کښتنی خوا یې ۱۲۵ سانتي متره ده) د ډبرې مخ هوار دی، خو تر لیکنـې مخکـې یـې ځینـې ځایونه الوتي وو او کوچني داغونه یې درلودل؛ خو پر ډېرلیـک کینـدل شویو تورو ته کوم زیان نه دی رسېدلی او ۲۵ کرښې یې په اسانتیا سره لوستی شو. په یوناني شکسته لیک ټول ۹۴۷ توري لري او شمېر یې پـه (۲۵) کرښو کې توپیر لري، هره کرښه یې له ۲۵ تر ۴۸ پورې توري لري. د دې ډېرلیک په اړهM. MARICQ د ۱۹۵۸م کـال د پـاریس ایشـیاټیک ژورنال په څلورمه ګڼه کې خپله رایه ولیکله، بیا M.B. HENNING پـه ۱۹۶۰م کال د لندن پوهنتون د ختیزو څېړنو په بولیټن کې خپلـه لوسـتنه خپـره کـړه. همدارنګـه EMILE BENVENISTE د ۱۹۶۱م کـال د ایشیاټیک ژورنال په یوه ګڼه کې خپل مطالعات د همدې ډېرلیک د کـټ مټ دوو نورو نسخو په اړه، چې د سرهٔ کوتل په کیندنو کې پر څو ډبـرو لاس ته راغلي، د کلمو د جزوي اختلافاتو په ضبط سره خپـاره کـړل او



په دې ډول د یوه کوشاني ډبرلیک درې نسخې موندل شوي دي. زه په دې رساله کې هغه لويه چې پر تيږه ليکل شوې، لومړنی نسخه نوموم او د خپلو مطالعاتو اصلي متن يې بولم او دوې نورې نسخې، چې پر بېلابېلو تيږو لاس ته راغلي دويمه او درېيمه نسخه يې بولم. د دويمې او درېيمې نسخې شرح به د همدې رسالې په پای کې ورکړم او د درېواړو نسخو عکسونه به هم راوړل شي.

ما دغه ټولې لوستنې په پام کې نيولي او د کلمو په تحليل او دلايلو سره چې د هغو په اړه يې لرم په دې رساله کې مې خپله رايه وکښله؛ خو اعتراف کوم، چې زما دغه نظريات پرېکند او حتمي نه دي او که چېرې په راتلونکي کې تر دې معقولې او دقيقې لوستنې پرعلمي بنسټونو او يا هم د راتلونکو موندنو په پايله کې رامنځ ته شي، چې پر مثبتو او کلکو دلايلو ولاړې وي، نو هغه بايد له وسوسو پرته ومنو او پر خپلو نظرياتو ټينګار ونه کړو.

په دې رساله کې مې لومړی هره کلمه د ژبنيو او تاريخي دلايلو پر بنسټ تحليل کړه، په پای کې مې د ډبرليک د متن انځورونه په اصلي بڼه ورکړي دي. د يوناني تورو يوه تابلو مې راوړې، د ډبرليک کلمې مې د هغو له لوستنې او پارسي معنی سره ملې کړې.

د ځانګړو کتنو او پايلو په برخه کې، چې د افغانستان د دې پخواني فرهنګي سند له مطالعې او تحليل څخه لاس ته راغلې دي، ځينې ژبني، ادبي او تاريخي مطالب مې پر دې رساله ورزيات کړل.



هیله من یم زما دغه لږه هڅه په راتلونکي کې د پلټونکو لپاره ګټوره شي، که کومه تېروتنه او نيمګړتيا رامنځ ته شوې وي، هغه د علم د پرلپسې څېړنو او پلټنو په رڼا کې ليرې کړئ.

جمال مېنه، کابل

۱۳۴۱لمريز، د دلوې لومړی شپه

عبدالحی حبيبي



# لومړنی کتنې

د سرۀ کوتل د ډبرلیک د کلمو د تحلیل پر وخت یوڅه تاریخي او ژبني مطالعات برابر شوي دي، هغه لاندې د دې کتاب په لومړی برخه کې راوړم، چې له ګرانو لوستونکو سره د ډبرلیک د متن په برخه کې مرستندوی شي.

## ۱_ د ډبرلیک ژبه یا ۱۸۰۰ کاله پخوانی پارسي

اروپایي ختیځپوهانو، چې دا ډبرلیک مطالعه کړی دی، هیننګ او ماریک د هغه ژبه باختري ګڼلې ده، خو څرنګه چې بغلان په تخارستان کې پروت و، ښه به وي چې تخاري یې وبولو او ما په دې رساله کې هغې ته کوشاني ژبه ویلې، چې رښتینی نوم یې دی، ځکه چې البیروني او البشاري مقدسي د بلخ او بدخشان تر منځ ولایت ژبه تخاري بللې او هغه یې بلخي ژبې ته نږدې ګڼلې ده(۱) نو له دې امله که دې ژبې ته تخاري هم ووایو سمه ده.

تر اوسه موږ تر اسلامي پېر مخکې کوم ډېر پخوانی سند د هغې ژبې په اړه، چې د دري پارسي مور وي په لاس کې نه درلود؛ خو په هغو پېریو کې، چې سوېلي پهلوي ژبه په پارس او شمالي پهلوي ژبه په ماوراءالنهر کې تر ختن او تورفان پورې غزېدلې وه او د ساسانیانو د دربار، ادب او علم ژبه وه، په خراسان او د هندوکش په لمنو کې تر کندهار ولایت پورې د کوشانیانو او د افغانستان د سیمه ییزو پاچاهانو لکه هفتالیانو په دربار کې یوه ژبه وه، چې هغې ته د افغانستان د اوسنۍ دري او پارسي ژبې مور ویلای شو. د دې ژبې تر ټولو پخوانی اثر دا دی د بغلان د سرۀ کوتل په ډبرلیک کې لاس ته راغلی دی، چې په دویمې مېلادي پېړۍ پورې اړوند دی. لیکدود یې شکسته یوناني دی.

دا تخاري یا کوشاني ژبه لکه چې د هغو د کلمو د تحلیل په برخه کې یې وینئ د افغانستان د اوسنۍ پارسي ژبې، دري ژبې او له پښتو سره هم ټینګې اړیکې لري او زیاتره کلمې، جوړښتونه او حتی افعال یې له پښتو سره ګډ دي؛ خو پښتو یې نه شو ګڼلای، بلکې د افغانستان د اوسنۍ پارسي پخوانی بڼه ده. تر څنګ یې د کلمو ریښې په لرغونې پارسي، پهلوي، سغدي، ختني او د افغانستان په ځینو نورو لهجو کې هم موندلای شو. ما د ((لویکان غزنه ویشتو)) په رساله کې د لومړنیو کتنو له مخې لیکلي وو: ښایي د دې کتیبو ژبه پښتو او یا هغې ته نږدې ژبه وي، خو د دې کتیبې د کلمو سمې او ځیر لوستنې او (O) فاصلو له مخې، چې په لیکدود کې په پام کې نیول شوي وو، د الفاظو تحلیل یې دا په ډاګه کړه، چې دا ژبه تر پښتو د افغانستان پارسي ته نږدې ده؛ نو له همدې امله د کوشاني ژبې او د دې ډبرلیک په اړه دوه احتماله شته دي:

۱- ښایي چې دا ژبه د فلالوژۍ په اصطلاح د یوه لوی I-SO-GLASS ژبه وي. یعنې هغه سیمه چې دوې ژبې او دوې لهجې سره

---

۱- آثار الباقیة ۲۲۲ او احسن التقاسیم ۳۳۵ مخ.

پکې ګډېږي او احیاناً له دوو یا څو ژبو څخه یو لهجه یا ګډه ژبه رامنځ ته کوي.

ښایي پخواني ویدي او اوستایي آریایي نژاده پکهتانو د هندوکش په سوېل کې له پښتو ژبې سره شتون درلود او د هندوکش په شمال کې هم آریایي نژاده خلک وو، چې په بله ژبه (پخوانۍپارسي) یې خبرې کولې. دغه دواړه ژبې د ټولنیزو، اقتصادي او سیمه ییزو اړیکو په پایله کې سره ګډې شوي دي او په یوه ایزو ګلاس کې لکه د هندوکش لمنې، د تخارستان ولایت، همدغه کوشاني ژبه هغه ډېرلیک چې موږ یې په اړه غږېږو رامنځ ته کړی وي، چې د دواړو ژبو عناصر لري.

۲ـ خو دویم احتمال دا دی، چې کوشاني ژبه په هغه بڼه لکه چې په دې ډېرلیک کې لیدل کېږي د پښتو او دري تر پیدایښت مخکې په دې هېواد کې د دربار، لیکنې او ادب ژبه وه.

د دویمې مېلادي پېړۍ په شاوخوا کې چې تر هغه وروسته د څلورو پېړیو په اوږدو کې د اسلام تر لومړیو پورې دوې ژبې پښتو او دري له هغې څخه را منځ ته شوې وي، ځکه چې د دري او پښتو تر ټولو پخواني راپاتې شوي آثار هماغو لومړنیو اسلامي پېړیو ته رسېږي.

که چېرې دا دویم احتمال ومنو، باید د دې ډېرلیک ژبه د پښتو او دري ژبو مور وګڼو، چې له یوې مبدا څخه د پښتو ژبې د بشپړ بدلون لپاره دغه څلور پېړۍ وخت ښایي ډېر لږ وي؛ نو له دې امله دا دویم احتمال هم د منلو وړ دی.

تر دې وروستیو پورې دا عقیده خپره وه: چې د عربو تر حملې وروسته پهلوي ژبې تغییرات پیدا کړل او ورو ورو په اوسنۍ پارسي ژبې واوښته(۱) خو په دې وروستیو کې بله عقیده څرګنده شوې، چې پارسي ژبه تر اسلام پخوا دورو کې هم د پهلوي په وړاندې موجوده وه(۲)

د دې مطلب لپاره یې یوشمېر دلایل شمېرلي دي: چې هیڅ کوم یې د دې ډېرلیک د شتون په انډول مهم نه دي او اوس چې د بغلان لاس ته راغلی ډېرلیک وینو، اعتراف کوو چې اوسنۍ پارسي ژبه له پهلوي څخه نه ده رابېله شوې بلکې له ۱۸۰۰ تر ۲۰۰۰ کالو پورې مخکې له دې په تاریخي تخارستان کې د خبرو، لیکلو، ادب او دربار ژبه وه، چې دا دی د (۱۶۰) لفظونو په شاوخوا کې د هغه ۲۵ کرښیز ډېرلیک په هماغه پخوانۍ بڼه له تاریخي زړو توکو سره په لاس کې لرو؛ نو له دې امله د د ې ارزښتناک ډېرلیک موندنه د ژبپېژندنې په نړۍ او د افغانستان د ادبیاتو په تاریخ کې بدلون رامنځ ته کوي او زړې عقیدې ټکنۍ کوي.

د هغو دلایلو له جملې څخه، چې تر اسلامي دورو دمخه د پارسي ژبې د شتون لپاره یې وړاندې کول دا وو، چې د دري ژبې منظوم او منثور آثار د ابو منصوري د شاهنامې د منثورې سریزې تر لیکنې وروسته

---

۱- اقبال، تاریخ ادبی مجله دانشکدهٔ ۴۱۰/۱- ډاکټر شفق تاریخ ادبیات ایران ۳۳ - تقي زاده یادګار مجله۹/۶.

۲- د برهان قاطع سریزه، ۲۷ مخ.

په (۳۴۶ هـ.ش) کې لاس ته راغلي، چې دا ټول آثار په روانه، سمه او پخه دري دي، نو باید پېړۍ پېړۍ تر اسلام دمخه روزل شوې وي، چې د ادبي فصاحت او متانت دې درجې ته رسېدلې وي. بله دا چې د اسلامي پېر له لومړیو څخه ځینې عبارات او روایتونه، چې په عربي(۱) کتابونو کې نقل شوي په روانه پارسي دي. او بیا هغه مهال چې په خراسان او سیستان کې په دري شعر ویلو پیل وکړ، دا شعرونه هم په پارسي کې پالل شوي او پاخه دي، چې باید پخوا پېړۍ پېړۍ ترتیب شوي او دې پخلي ته رسېدلي وي.(۲)

اوس د دې دلایلو په رڼا کې پخوا یاد شوي دوه احتمالونه د پښتو او دري د پیدایښت په اړه تحلیلوو:

د بغلان د تر بحث لاندې ډبرلیک په استناد باید ووایو، چې د پارسي (دري) ژبې مور په هغه بڼه، چې په دې ډبرلیک کې ثبت شوې، د لومړۍ او دویمې مېلادي پېړۍ‌په شا وخوا کې کابو ۲۰۰۰ کاله وړاندې موجوده وه. دا ژبه له هماغې پخوانۍ بڼې د اسلامي دورې تر لومړیو پورې د پنځه- شپږو پېړیو په موده کې د لومړیو اسلامي پېړیو د دري ژبې بڼې ته راغله، چې د نثر تر ټولو پخوانۍ بېلګه یې د ابو منصوري د شاهنامې په سریزه (۳۴۶ هـ) کې موجوده ده.

۱- د د جاحظ په المحاسن و الاضداد کتاب کې (۱۶۰_ ۲۵۵ هـ) او ابن قتیبه په عیون الاخبار، تاریخ طبري او نورو کې ځینې دري عباراتراغلي دي.

۲- د تفصیل لپاره د ډاکټر معین چاپ د برهان قاطع سریزه وګورئ.

څرنګه، چې موږ له پښتو ژبې څخه هم د اسلامي لومړنیو پېړیو اړوندې ځینې بېلګې په لاس کې لرو، باید په همدې بنسټ، چې د دري ژبې د تحول لپاره مو ومنل پښتو ژبه هم د اسلام تر راتګ پېړۍ پېړۍ د مخه موجوده وګڼو، چې د اسلامي پېر په لومړیو کې د دې پیاوړتیا او پخلي درجې ته رسېدلې وي، چې په هغې کې پاخه او ښه شعرونه وویل شي.

له دې کتنو څخه باید پایله واخیستل شي، چې پښتو له کوشاني ژبې څخه نه ده زېږېدلې(۱) بلکې له هغې سره موازي د پښتونخوا په غرونو کې موجوده وه او دا دواړه افغاني ژبې کټ مټ، لکه نن یوه له بلې سره نږدې او هم مهاله په یوه هېواد او یوه سیمه کې ویل کېدلې او یو پر بل یې خپل اغېز ښندلی دی، چې اوس په دې ډبرلیک کې ځینې توکي، کلمې او حتی پښتو فعلونه لیدل کېږي، چې ښايي کوشاني ژبه له پښتو څخه اخیستي وي او یا پښتو له هغې ژبې څخه اغېزمنه شوې وي. د دغې او خپلمنځې اغېزمنۍ‌یوه ژوندۍ بېلګه د افغانستان په اوسنۍ پارسي او پښتو کې لیدل کېږي، چې د یو بل کلمات یې سره حل اوګډ کړي دي. کوم اصطلاحات او کلمات چې په افغاني پارسي کې منځ ته راغلي، نو د پارس، پارسي ژبې په هغو نه پوهېږي. د ساري په ډول د کابل په پارسي کې د توی او آراستن عروس په اصطلاحاتو کې د پښتو (پلو

۱- ځکه له کوشاني سره د پښتو ژبې دبشپړ توپیر لپاره ۴، ۵ پېړۍ وخت پوره نه دی.

غوټ) ننوتی دی، چې معنی يې (د ناوې د پړوني غوټه ) ده او رېښه يې په بشپړه توګه پښتو ده.

(پلو: ګوشهٔ چادر) + (غوټه: ګره) او يا دا چې د کندهار پارسي ژبي غړ کوي او زوی! = ای پسر! چې د پښتو زوی (پسر) يې اخيستی دی. همدارنګه په پښتو کې په زرګونو پارسي کلمې ننوتي دی، لکه سيب، درخت او نورې، چې په کندهار کې يې بې تکلفه وايي او د ژبې تر ګرامري قواعدو لاندې يې راوستي دي. د مذکر - مؤنث مرتبې، له ګرامري حالت سره سم تغيير او د لاملونو تر اغېز لاندې او ړون يې پر هغو پلی کړی دی او پښتو ژبي سره له دې چې پخپله په ژبه کې د هغو بېلګې او انډولونه لري، خو له انديښنې پرته يې کاروي.

## ۲- د کانيشکا پېر او د دې ډېرليک د کښلو کال

له ۶۸ تر ۷۴ کلمو پورې د دې ډېرليک دکښلو تاريخ داسې کيندل شوی دی:

((پدئی ايوګ او دو هيرس خشون نسيان ما مال)) يعنې د سلطنت په يو دېرشم کال د وري مياشت.

له هغو يو شمېر کتيبو څخه، چې د کانيشکا او د هغه د کورنی له نورو پاچاهانو څخه راپاتې دي ثابتېږي، چې د کانيشکا د ناستې کال يې د هغه پېر د تاريخ مبدا ټاکلې وه او په زياترو کتيبو کې يې د کال موسم او د هغه د واکمنی څووم کال ان د هغه تر مړينې وروسته هم ليکۀ، خو د دې واکمن د تخت ناستې د تاريخ او د ربښتيني پېر د ټاکلو په اړه د هغه پېر د ډېرو کتيبو له پيدايښت سره سره، بيا هم د مؤرخينو ترمنځ د نظر اختلاف دی او عموماً يې د هغه د ناستې کال د (۱۲۰م) په شاوخوا کې ګڼلی دی.(۱)

ستين کونو STEN-KONOW د اکتا اريا نتاليا مجلې د (۶ ګڼې تر ۹۳ مخ وروسته) په دې اړه مقاله ليکلې او د هغه د پاچاهی‌کلونه يې له ۱۲۵م-۱۵۲م پورې ټاکلي دي، چې دا قول د کريستن سن غوندې څېړونکی هم نقل کوي(۲) خو هغه څه چې د افغانستان د تاريخ ليکوال د کانيشکا پېر د ۱۲۵م - ۱۶۰م په شاوخوا کې ټاکي(۳ ) دا وينا د تآمل وړ ده، ځکه د کانيشکا د پېر هندي کتيبې په لاس کې شته، چې يوه يې د ۲۳ کال د اوړي د لومړی مياشتې تاريخ يعنې ۱۵۱م سنه لري. په داسې حال کې چې بله ليکنه د ۲۴ کال د اوړي مياشت له ۱۵۲کال سره برابر، د کانيشکا د ځايناستي واسشکا له پېر سره اړيکه پيدا کوي. له دې څخه استنباط کوي، چې کانيشکا به د ۱۵۱م د اوړي او د ۱۵۲م د اوړي تر منځ مړ شوی وي(۴ ) له دې امله د افغانستان د تاريخ د ليکوال د وينا له مخې، چې د کانيشکا پېر يې تر ۱۶۰م پورې رسولی اعتماد پرې نشو کولای.

---

۱- تاريخ افغانستان ۲، ۲۲۲ مخ.
۲- مزدا پرستي در ايران قديم، ۱۱۴مخ.
۳- تاريخ افغانستان ۲، ۲۲۳مخ.
۴- خروشتي کتيبې، د ستين کونو، ۱۶۸ مخ.

سربېره پر دې ستین کونو د چیني (هو - هان - شو) د اسنادو له مخې استنباط کړی، چې کانیشکا له مړینې مخکې په ۱۵۲م کې ختن ته تللی و او په همدې کال یې له نړۍ سترګې پټې کړي یا وژل شوی دی(۱) همدې لیکوال د کانیشکا د تاریخي پېر پیل له(۱۲۸ - ۱۲۹م) څخه ټاکلی دی(۲)

که چېرې اوس د کانیشکا د پېر مبدا ۱۲۹م ومنو؛ نو د پسرلي فصل د وري (نیسان) میاشت یو دېرشم کال له ۱۶۰ م سره سمون خوري، چې د کانیشکا تر مړینې به اته کاله وروسته وي.

ګڼ شمېر خروشتي او براهمي کتیبې په لاس کې دي، چې همدغه تاریخي مبدا لري، نو له هغو داسې پایله لاس ته راځي:

د کانیشکا له کتیبو چې ۱، ۳، ۱۳ سنې لري د کانیشکا پېر.

د واسشکا له کتیبو د ۲۴، ۲۸ سنه د = =

د هوویشکا له کتیبو د ۳۳، ۶۰ سنه = =

د واسودیوا له کتیبو ۷۴، ۹۸ سنه د = = (۳)

نېټو د دغه تعیین له مخې باید ووایو چې د بغلان ډبرلیک باید د کانیشکا د اولادونو واسشکا یا هو ویشکا پر پېر د ۱۶۰م شاوخوا په(حمل میاشت) کې لیکل شوی وي.

---

۱- خروشتي کتیبې ،د ستېن کونو ، ۱۶۹ مخ.

۲- پورتنی کتاب، ۱۶۵ مخ.

۳- پورتنی کتاب، ۱۶۴ مخ.

که موږ له احتیاط څخه کار واخلو او پر تخت د کانیشکا کښېناستل له ۱۲۰م- ۱۲۵م ومنو؛ نو د کتیبې د لیکلو تاریخ باید د۱۵۰ - ۱۶۰م ترمنځ وټاکو، چې د دویمې مېلادي پېړۍ منځ به وي.

## ۳- د کوشاني ژبې الفبې

تر هغه ځایه چې له دې کتیبې څخه ښکاري، د کوشاني ژبې الفبې لاندیني غړونه لري، چې هر یو غږ له یوناني شکسته الفبې سره سم لیکل کېږي، چې د هر یوه شرح په وروستیو کرښو کې د تورو د لمبر په ترتیب راغلې ده.

ښایي په دې ډبرلیک کې د دې ژبې ځینې غړونه نوي راغلي او هغه کلمې پکې استعمالېږي، چې د ډبرلیک په متن کې نه وي، خو هغه څه چې له ډبرلیک څخه ښکاري داسې دي:

۱- د پارسي الف پر ځای A او کله د فتحې پر ځـای راغلـی دی، خو د (آ) غږ لپاره جلا نښه نه لري، له همـدې املـه د الـف فتحـې او (آ) توپير ګران دی.

۲-د (ب) پر ځای B کـټ مـټ همدغـه اوسـنی غـږ دی، لکـه د (آب=اوبه) کلمه.

۳- د (پ) پر ځای P کټ مټ همدغه اوسنی غږ دی، لکه د پـوهر (پور، پسر= زوی) کلمه.

۴- د (ف) پر ځای F دغه غږ په اوسنی پښتو کې نشته او پر ځـای يې (پ) وايي.

۵-د (ت) پر ځای T لکه د (نسيت= نشته) کلمه.

۶- د (تهــ= ث) پر ځای TH، داسې غږ دی، چې د پښتو له (څ) غږ سره نږدې والی لري.

۷- د (خ) پر ځای KH، په پارسي کې کله په (ک) اوښتی دی.

۸- د (د) پرځای D، د ځينو کوشاني کلمو په پای کې هم و، چـې په پارسي او پښتو کې يا لوېدلی او يا په سپکه(هــ) اوښتی دی.

۹- د (ر) پر ځای R، کټ مټ همدغه اوسنی غږ دی، لکه د (کرد= وکړ) کلمه.

۱۰- د (ز) پر ځایZ، په پارسي کې کله په (ژ) اوښتې ده، خـو پـه دې ډېرليک کې د (ژ) او (ج)نښې جلا نه تر سترګو کېږي؛ نـو ښـايي لـه دريو غږونو څخه يې يوازې (ز) درلود.



۱۱- د (س) پر ځای C=S، چې په پارسي کې کله په (ز، چ) او په پښتو کې په (څ) اوښتی او کله په (ز) اوښتی دی.

۱۲- د (ش) پر ځایSH، دغه نښه په اصلي يوناني الفبـې کـې نـه وه، د کوشاني (ش) لپاره يې رامنځ ته کړې ده. په اوستا کـې هـم د (ش) غږ و او په پښتو کې هم جلا شته دی.

۱۳- د (ښ) پر ځای KH=SH (؟) د پښتو د (ښ) غږ يې پـه (ش + خ) چې د دغو دوو غږونو جامع غږ دی ښوولی دی، چې په کوشاني کې يې هغه لکه د کندهار د (ښ) په ډول اداکاوۀ او يوازې د (خ) غږ نه و، ان هغه يې بايد يوازې د (خ =X) په بڼه ليکلای، څرنګه چې همدغه د مشدد شين غږ په اوستا کې هم و اوپه سنسکرېت او روسي کـې هـم هغـه تـه نږدې غږونه شته، له دې امله بايد ووايو، چې دغه غږ په افغانسـتان کـې تاريخي مخينه لري او د اداء سمه بڼه يې د (ش او خ) غږ ترمنځ ده.

۱۴- د (ک) پرځایK، کټ مټ همدغه اوسنی غږ دی، لکه (کند= کوي) کلمه.

۱۵- د (ګ) پر ځای G، لکه د بګ (عظيم) کلمـه، چـې دا غـږ پـه پارسي او پښتو کې په اضافي او تفخيمي حالت کې په (ک) اوښتی دی.

۱۶- د (نګ) پر ځای NG،چې د ځينو کوشاني کلمو په پـای کـې ليدل کېږي.

۱۷- د (ل) پر ځای L،په پښتو او پارسي ژبو کې په ځينو کلمو کې په (د، ر) اوښتی دی.



۱۸- د (م) پر ځای M،په مفرده بڼه د ملکیت نومځری دی، چې کله د فاصلو (O) ترمنځ راغلی او کله له بلې کلمې سره نښتی دی.

۱۹- د (ن) پر ځای N،کټ مټ اوسنی نون دی.

۲۰- د (و) پر ځای W، غالباً معروف پېښوال واو د کلمو پـه پیـل کې.

۲۱- د (و) پر ځای(O)، سپک واو.

۲۲- د (هـ) پر ځای H،دغـه د اوپسیلون ځـانګړې بڼـه، چـې پـه یوناني کې نه وه، په کوشاني کې د H لپاره ځانګړی شوې وه.

۲۳- د (ی) پر ځای E معروفه درنه (ي).

۲۴- د (ی) پر ځای E سپکه (ی).

۲۵- زور= فتحه A.

۲۶- پېښ= ضمه (O).

۲۷- کسره (I) دا توری کله د کلمو پـه مـنځ کـې د کسـرې لپـاره راغلی، خو که چېرې تر فاصلې (O) وروسته لیکل شـوی وي، د اوسـنی اضافي کسرې پر ځای دی، چې پـه دري لیکـدود کـې هـم کلـه (ی) د اضافي کسرې پر ځای په زړو خطي کتابونو کې لیدل کېږي؛ خو اوس د (ی) بڼه وړه شوې او پر یو شمېر (هـ) پای کلمو د همزې(ء) په بڼـه لیکـل کېږي، لکه (تخته ی سیاه) چې اوس یې (تختهٔ سیاه) لیکي.



۲۸- د دوو کلمو ترمنځ فاصله(O) چې په ټـول ډېرلیـک کـې پـه سونو ځلې د کلمو ترمنځ تکرار شوې، چې شرح یې په وروستیو کرښو کې ورکول کېږي.

له هغو تورو او نښو څخه، چې په ډېرلیک کې لیدل کېږي،څرګنـده ده، چې کوشاني ژبه د غږونو د ورته والي له مخې د لوېدیزو آریایي ژبو لـه ډلې څخه وه، ځکه د ختیزو (هندي) ژبو ځانګړي غږونه، لکـه (ټ، ړ، ډ، ڼ) په هغې کې نه ښکاري. که چېرې د ختیزو او لوېدیزو آریایي ژبـو او لهجو برید پوله اباسین (سندسیند) او هلمند وګڼو؛ نو د دغو دوو لویو ناوو ترمنځ یو آیزو ګلاس رامنځ ته کېږي، چې په هغه کې پښتو ویل کېـږي او دا ژبـه د بدخشـان درې د ځینـو نـورو لهجـو اورمـړي، پشـه یـي او نورستاني سره د ختیزو او لوېدیزو لهجو جامع غږونه دي.

په دې ډېرلیک کې د پارسي او پښتو ډېر کارېدونې غږونه (ج، چ، ژ، غ) هم نه لیدل کېږي او څرګنده نه ده، چې دا غږونه د تخاري ژبې پـه اصل کې نه وو، یا دا چې د دې ۲۵ کرښیزډېرلیک په دغو ۱۶۰ کلمو کې د هغو کلمو د کارېدو ځای نه دی راغلی، چې په هغـه کـې دا تـوري او غږونه شتون ولري.

په هر صورت، تر هغه وخته چې د دې ژبې نور اسناد لاس ته رانه سم له وراه د همدې ډېرلیک له مخې د هغې د الفبا غږونـه، لکـه څنګـه چې پورته شرح شول ټاکلای او تعیینولای شو.



## ۴_ د کلمو فاصلې

یو له هغو ټکو څخه چې آروپایي ختیځپوهانو د یوناني کوشاني لیکدود د ډبرلیکونو او د هغوی د سکو د لوستلو په بهیر کې نه دی درک کړی او ورته پام شوی یې نه دی، د کلمو ترمنځ هغه فاصلې دي، چې د هرې کلمې په پای کې یې جلا یوه (O) نښه ایښې ده.

هیننګ، ماریک او نورشکایت لري، چې د بغلان د ډبرلیک لوستل له همدې امله ستونزمن دي، چې د هغه د کلمو ترمنځ فاصله نه شته؛ نو له دې امله له یوې کلمې څخه دبلې بېلول او جلاینه ستونزمن کار دی.

خو تر هغه ځایه، چې د کوشاني دورې سکې مې په یوناني لیکدود ولیدلې او د بغلان لاس ته راغلی ډبرلیک مې ولوست او د هفتالیانو د دورې ډبرلیکونه مې د کندهار په روزګان کې ولیدل، دې پایلې ته ورسېدم چې په دې لیکدود کې د کلمو فاصله د (O )په بڼه موجوده ده. که چېرې دا فاصلې د کلمو له پای څخه جلا کړو، ډېرې اصیلې او ثقه کلمې ترې پاتې کېږي، چې کټ مټ همدغه کلمې د درې او پښتو په پخواني ادب کې لرو.

د ختیځپوهانو دا تېروتنه د ګډېدو او لویې تېروتنې لامل شوه، چې یو شمېر ممسوخې کلمې یې له فاصلې (O) سره یو ځای موږ ته وسپارلې، چې د ډېرې سرګردانۍ او تېروتنو لامل شوې، دا اوږون او ناسمه لوستنه تر دې وروستیو پورې روانه وه.

لکه د (شا - شاه) کلمه یې د هغه له وروستی فاصلې سره (SHAO = شاو) لوستې ده او د پارسي (کرد KIRD ) یې (کردو) لوستلی دی او دغه دوې اصلي کلمې یې په مسخه شوې بڼه موږ ته وسپارلې. همدارنګه په سونو نورې کلمې شته، چې په دې ناسمو لوستلو کې دناسم لوستونکو وسیله شوې.

په افغانستان کې د یوناني لیکدود په ټولو لاس ته راغلو آثارو کې، چې د کانیشکا د پېر او له لومړۍ مېلادي پېړۍ څخه د راوروسته دور دي، د کلمو په پای کې د یوناني (O) په بڼه یوه کوچنی دایره موجوده ده، چې د یوې او بلې کلمې ترمنځ د فاصلې کار ورکوي؛ نو دغه فاصله باید د کلمو جزء و نه شمېرو، چې کله د کوچنی مربع □ په بڼه هم راغلې ده.

د هخامنشي کتیبو په مېخي لیکدود کې هم دا فاصلې د I> په بڼه موجودې دي، چې یوه کلمه یې له بلې څخه جلا کړې او هغې ته ژبپوهان(WORD DIVIDERS ) وایي(۱) د ډبرلیک د کلمو د څېړنې په برخه کې ښایي درنو لوستونکو ته روښانه شي، چې دغه فاصلې (O) په هیڅ ډول د کلمو اصلي اجزا نه شي کېدای. د ساري په توګه موږ نه شو کولای ډېرې اصلي کلمې، لکه بګ لنګ، مندر، بګ پوهر، آب، کند، نوبخت، فرومان، بورز مهر او نیسان په مسخه شوي ډول بګو لنګو، مندرو، بګو پوهرو، ابو، کندو، نوبختو، فرومانو، بوزر مهرو او نیسانو

---

۱- اولډ پرشن، ۱۲مخ.

ولولو. څنګه ممکنه ده، چې په یوه ژبه کې ټولې کلمې هرومرو په (O) پاته رسېدلی وي او په یوه ډبرلیک کې، چې د ۱۶۰ په شاوخوا کې کلمې لري، هیڅ یوه کلمه پیدا نشي، چې په پای کې یې (O) نه وي.

اوس د بېلګې په توګه د هغې دورې ځینې سکې تر مطالعې لاندې نیسو، چې کلمې یې په یوناني لیکدود لیکل شوې وي او ګورو، چې دا فاصلې (O) عموماً د کلمو دبېلولو لپاره کارېدلې.

له لومړۍ مېلادي پېړۍ ځخه د لوی شهنشاه ګندو فرس (۱۹/۴۸م) په سکو کې هم همدغه نښه د کلمو د فاصلو په توګه لیدل کېږي، چې کله یې بڼه مربع وي او په دې وروستیو کې د وړې دایرې په بڼه اوښتې ده، لکه د کوشانیانو لومړني پاچا کوزلا-کدفیزوس (۴۰، ۷۸م) په یوه سکه کې داسې لیکل شوي دي: KOZLA=O=KADFIZ OS چې د کوزلا او کدفیزوس ترمنځ فاصله د (O) په بڼه موجوده ده.(۱)

۲- د دویم، یم کدفي سیس (۷۸ - ۱۱۰م شاوخو په سکه کې هم همدغه نښه لیدل کېږي:BACILEYC-O-EM-O-KADFICE چې داعبارت باید داسې ولولو: بازي لیسل + دیم + کدفي سیس، چې همدا فاصلې په هغه کې شته دي.

---

۱- متاسفانه چې کوشاني شکلونه، نومونه او کلمې مې په دې کتاب کې په هماغه یوناني شکسته لیکدود چې د ډبرلیک په اصل کې موجود وو ونه لیکلای شول، ځکه په مطبعه کې هماغه توري نشته، خو څنګه چې مې د الفبې په شرح کې کټ مټ اشکال کلیشه کړي دي او هم مې کټ مټ د ډبرلیکانځورونه ورکړي دي، ګران لوستونکي د هغو له مخې هغه توري، کلمې او شکلونه د ډبرلیک په اصلي لیکدود لیدلای شي.



۳- پخپله د کانیشکا یوه سکه داسې ده: (کانیشکي کوشان شا + نن + شا)

KANESHKI KOSHANSHA-O-NIN-O-SHA-O، چې د فاصلې درې نښې پکې موجودې دي او د همدې سکې پر بل مخ په تصویر او نښې سره FARR-O لیکل شوی، چې هماغه د درې فر دی، چې د پای (O) یوازې د کلمې وروستی نښه ده.

۴- د همدې کانیشکا پر بله سکه یوازې دغه عبارت لیکل شوی دی:

SHA-O-KANESHKI (شا + کانیشکي) چې تر (شا) وروسته یوه د فاصلې نښه لري.

۵- د کانیشکا د زوی هوویشکا (۱۶۰م شاوخوا) یوه سکه داسې لیکنه لري:

OESHKI KOSHON-O-SHA-O-NAN-O-SHA-O یعنې: اویشکی کوشون + شا + نان + شا، چې څلور (O) فاصلې لري او د واسودیوا (۱۸۲ - ۲۲۰م شاوخوا) له سکې هم څرګنده ده، چې د (شا + نان + شا =شاهان شا )کلمه یې هم په دوو فاصلو(o) لیکله.

۶- د دې لپاره، چې (O) فاصله ده نه جلا توری، ډېر قوي دلیل دا دی چې د (۷۸ - ۱۱۰م) په شاوخوا کې ویم کد فیزیز له حکمرانانو څخه یوه، چې په کوشاني هندي متصرفاتو کې یې سکه وهلې وه، پر هغې یې په یوناني لیکدود کې دا د فاصلې نښه د کلمو په منځ کې نه ده کارولې؛



نو له دې څخه ښکاري چې د کلمو له اصلي اجـزاو څخـه نـه وه او کـه غوښتل يې نو هغه يې نه ليکله. د دې هندي کوشـاني نايـب السـلطنه د سکې پر مخ داسې ليکل شوي دي:

BACLIEY, BACILEW ... CWTER MEGAG بازي ليس +
بازيليو...(۱ )+ سوتر + ميګاګ.

لکه څرنګه چې مو د کدفيزيز د سکې پـه ۲۵ لمبـر کـې وليـدل، وروسته د بازي ليس له کلمو څخه يو (O) راغلی؛ خو په دې ځـای کـې نشته، نو که چېرې د کلمې جزء وای دلتـه هـم ليکـل کېـدۀ. د همـدې مطلب لپاره بل دليل د دې ډېرليک د درېو بېلا بېلو نسخو له لوستلو څخه لاس ته راځي له دې امله:

د دې ډېرليک د درېـو نسـخو د ځينـو کلمـو تـرمنځ لـږ املايـي اختلافات ليدل کېږي، چې له هغې جملې په لومړۍ او درېيمه نسخه کې د شاه - ماه کلمې يې MA-O-SHA-O ليکلـي دي او د فاصـلې(o) نښـه له A وروسته شته ده؛ خو په دويمه نسخه کې دغه دوې کلمې په دې املا راغلې دي MAHO-SHAHO زما په عقيده پـه لـومړي صـورت کـې د کلمو لوستنه (شا - ما) ده نه شـاؤ - مـاؤ او (O) دفاصـلې نښـه ده او پـه همدې بنسټ د دويم صورت لوستنه هم (شاه - ماه) ده نه شاهو ماهو او د کلمو وروستی (O) اصلي جزء نه دی. داسـې برېښـي چـې د دغـو دوو

۱- د سکې په اصل کې دا توری پوره نه دی ضرب شو؛ نو ما ونه شو لوستلای.

کلمو املا په هماغه وخت کې دوه ډوله وه (شا – شاه) او (ما – ماه) لکـه څنګه چې د شاه کلمه په دري ادبياتو کې کله د (شا) په بڼه هم وينو.

په لومړۍ او درېيمه نسخه کې يې SHA-O او MA-O ليکلي، خـو څرنګه چې يې په دويمه نسخه کـې وغوښـتل، چـې شـاه - مـاه د H د اوپيسلون په ورزياتېدو سره وليکي هغه يې له A سـره پيوسـت کـړل او ترهغو وروسته يې د فاصلې نښه (O) راوړې ده او دا دليل ښکاره کـوي، چې تر (شا - ما) وروسته (O)د دې کلمو اصلي جزء نه و اوکله چې يـې وغوښتل د (H)غږ د کلمو په پای کې وښيي، د (O) فاصـله يـې د کلمـو پای ته يوړه او SHAH-O، MAH-O يې وليکل.

د فاصلې د دې نښې آثار تر اسلام وروسته هـم پـه ځينـو خطـي نسخو او په قرآن شريف کې د آيتونو فاصلې هم پـه همـدې بڼـه ليـدل کېږي، خو څرنګه چې په عربي زاړه ليک کې دغه ليکنښې او اعجـام نـه وو، ابوالاسود دوئلی( ۹۶هـ. مړ) د ليکنښو په واسطه د عربي کلمو لپـاره حرکتونه وټاکل او ډېر اټکل دی، چې دغه ليکدود يې له کلدانيانو څخـه اخيستی وي.(۱) د ابن خلکان د وينا له مخې د عراق والي حجاج عربـي ته ورته توري د ليک نښو په واسطه يـو لـه بلـه تـوپير کـړل.(۲) لـه دې رواياتو څخه ښکاري، چې عربو اعجام، ليکنښـو او د فاصـلو ټـاکلو تـه اړتيا نه درلوده، خو کله چې عربي ژبه په ناعربو ملتونو کې خپره شوه د

۱- تاريخ تمدن اسلام ۸۰/۳مخ.
۲- وفيات الاعيان ۱۳۵/۱مخ.

عجميانو د اړتيا لپاره يې له نورو ملتونو څخه ليک نښې اعجام او د قواعدو ترتيب واخيست او په عربي کې يې تطبيق کړل. لکه چې خليل ابن احمد (۱۷۰م مړ) په کتاب العين کې يې د تهجي تورو ترتيب له سنسکرېت ژبې سره سم کړ.(۱)

د قرآني آيتونو د بېلتون لپاره له اړتيا سره سم د عبدالمالک بن مروان اموي په پېر کې د آيت په سر او پای کې يو ټکی کېښودهٔ، چې وروسته په درېو ټکو بدل شو(۲) او داسې برېښي، چې دا درې ټکي يې له پهلوي ليکدود څخه راخيستي وي، ځکه د پهلوي په خطي نسخو کې هم درې ټکي د جملو دبېلتون لپاره کارېدل او د پهلوي په تر ټولو پخوانی نسخه يسنا کې، چې د کوپنهاګ په موزيم کې خوندي او په (۷۲۶هـ= ۱۳۲۵م) کال کې هير بد مهربان کيخسرو ليکلې ده، هم همدغه درې ټکي د جملو په فاصلو کې کارول شوي دي. د قرآني آيتونو د پيل او پای په ټاکلو کې د افغانستان له عالمانو څخه محمد ابن طيفور سجاوندي غزنوي( ۵۴۰ يا ۵۶۰ هـ. مړ ) د الوقف والابتدا کتاب وليکهٔ او د قرآني درېدنو او تمېدا ډولونه يې پنځه ډوله (لازم،مطلق، جايز، مجوز بوجه، مرخص) وټاکل(۳) او څنګه چې ځينې دا پوهان عقيده لري، همدغه د سجاوندي سيستم تر هغه وروسته دود شو او د قرآن عظيم

۱- تاريخ تمدن اسلام ۱۱۵/۳مخ.

۲- الاتقان سيوطي، د مصر طبع، ۱۹۵م ۲/ ۱۷۱مخ.

۳- الاتقان ۸۴/۱ مخ، د رموزالقرآن په نامه کتاب هم هغه ته منسوب دی (کشف الظنون ۲۸۴/۴) او د همدې نخښنو نخښنو رمزونه دي.

الشان په ختيزو نسخو کې (له لوېديزو نسخې پرته) يې پيروي وشوه. همدغه د ځنډ نښې، چې اوس په قرآني نسخو کې ليدل کېږي د سجاوندي له سيستم سره سمې دي.(۱)

د سجاوندي دوقف او ابتدا کتاب د الهي کتاب ټول آياتونه يو له بله جلا کړي(۲) او داسې ښکاري، چې همدې افغاني عالم د دې خاورې له پخوانيو رواياتو څخه د قرآني آيتونو د بېلتون لپاره له فاصلو (O) څخه کار اخيستی وي، چې د اسلامي دايرة لمعارف د ليکوال د وينا له مخې دا کار له هغه وروسته پسې عملي شوی دی.

د دې مطلب يو دليل دا دی، چې د (O) نښه يا کوچنۍ دايره په خراساني نسخو کې او د اسلامي دايرة المعارف د ليکوال د وينا له مخې د قرآن عظيم الشان په ختيزو نسخو کې ليدل کېږي؛ خوپه لوېديزو نسخو کې يعنې د افريقا په شمالي خاوره کې دود نه ده. دا دليل څرګندوي، چې دغه نښه د اسلامي ختيزې نړۍ يعنې خراسان او شاوخوا ټاکلې ده، لکه څنګه چې د طبري تفسير د خطي نسخې په ژباړه کې چې په اوو ټوکو کې د تهران په سلطنتي کتابتون کې شته او په ۶۰۶هـ. کې د اسعد بن محمد يزدي په خط ليکل شوې او په ۶۰ هـ. کال[۳] کې احمد ابن نصر تذهيب کړې ده(۴) د آيتونو د فاصلو نښې د همدې (O) په بڼه

۱- دايرة المعارف اسلامي ۵۴/۴ مخ.

۲- طبع لاهور ۳۱۲۱ق.

۳ - دغه سنه سمه نه برېښي ؛ خو سمه يې هم ما معلومه نه کړی شوه(ژباړنه)

۴- حبيب يغمائي، تهران، ۱۲۳۹ هـ. ش چاپ.

تذهیب شوې لیدل کېږي.(۱ ) د دې تاریخي څېړنو له مخې ویلای شو، د فاصلې نښه (O) به د کوشاني پېر لـه پخوانیـو روایـاتو څخـه چـې پـه افغانستان کې موجوده وه په اسلامي پېر کې اخیستل شوې وي او ښـایي له سجاوندي پرته نورو پوهانو هم همدغه نښه پېژندله.

## ۵_ ځانګړې نښې یا لاسلیک

په دې ډېرلیک کې په وروستی۲۵ لمبر کرښه کې تـر ۱۵۴ او ۱۵۵ لمبر کلمو وروسته دوه ځانګړې نښـې کېنـدل شـوې دي، چـې هغـه د ډېرلیک په کېڼ مټ عکس کې وینئ. په دې اړه د یـادو شـویو لمبـرو د کلمو شرح وګورئ

## ۶_ په کوشاني ژبه کې ګرامري حالت

د ډېرلیک د کلمو دڅېړنې ترڅنګ په ګڼ شمېر برخو کـې نغوتـه شوې ده، چې یو شمېر په صایتو او علّي تورو پای ته رسېدلو کلمـو پـه دې ژبه کې بڼه اړولې ده؛ نو له دې امله کوشاني ژبه پښتو او سنسـکرېټ ته ورته ژبه ده، چې په پارسي ژبه کـې دا ګرامـري ځانګړنـه لـږه لیـدل کېږي.

۱- د قرآن عظیم د (۴۴۶هـ) په لیکلې نسخه کې، چې له سجاوندي مخکې ده، دغه نخښې د آیتونو په فاصلو کـې نه لیدل کېږي (د ډاکټر دیماند، رهنمای منابع اسلامي، ۴۰ نومره انځور.

په پښتو کې عامل توري، لکه: (له - ته – پر) او نـور موجـود دي، چې د یو شمېر کلمو پای او ان علت تورو ته د کلمو په مـنځ کـې تغییـر ورکړي، لکه کور (خانه) د (له) د ادخال په حالت کې له کوره (از خانـه) کېږي. کهول (دو دمان) د (ته) پـه ادخـال پـه کهالـه تـه تبـدېلېږي. پـه پېښورکې وایي، سینمې ته ولاړ، چې د سینما کلمه (ته) ته معموله راغلـه او د پای الف په (ی) واوښت.

کله د ځانګړي عامل له ادخال پرته، یوه کلمه په ګرامـري حالـت کې حرکات بدلوي، لکه سړی راغی (د ړ په زوَر) سـړِي وویـل (د ړِ پـه زېر) آ سړیه (په منادي حالت کې) دا هماغه کیفیت دی، چې په انګلیسي ګرامر کې د CASE بلل کېږي.

په دې ډېرلیک کې د کانیشکا نوم په ۴ لمبر کـې کانیشـکو پـه ۱۱ لمبر کې کانیشکي دی او د هغه پر سکو هم (کانیشکا + شا) او (کانیشکي کوشان شا + نان + شا) دی. د هغـه د زوی اویشـکا پـر یـوه سـکه هـم (اویشکي کوشون + شا + نان + شا) لیکل شوی دی. له دې ښکاري چـې د کانیشکا په زور پای کلمې دوه حالته درلودل: کانیشکا او کانېشکي.

همدارنګه د همدې ډېرلیک په ۴۷ لمبر کې د معبـد د بیـا رغـونې دپلاوي د رئیس نوم نوکونزوک راغلی، چې په فاعلي حالت کې او د ۷۵ اګاد وان فعل فاعل دی، خو همدغه نوم په ۱۴۳ لمبر کـې پـه موصـوفي حالت کې راغلی، چې (نوکونزیک) دی یعنې له پای نـه مخکـې واو پـه (ی) تبدیل شوی دی. په همدې بنسټ ویلای شو، چې ۱۴۰ کوز کاشکی

نوم په اصل کې کوز کاشکا و، په داسې حال کې، چې د پـوهر د کلمـې مضاف اليه شو الف يې په (ی) اوښتی دی.

خو دغه د حال بدلون ښايي، يوازې پر هغو کلمو چې په ځانګړو تورو پای ته رسېدلې جاري وي، ځکه موږ په همدې ډېرليک کې، لکه د (آب- ماليز- ساد) کلمې پرلپسې او په بېلا بېلو حالاتو کـې پـه يـوه بڼـه وينو، له دې څخه ښکاري، چې دګرامري احوالو د ابدال قوانين پر ټولـو کلمو نه تطبيقېدۀبلکې ځانګړې وختونه يې درلودل.

د دغو کوشاني نومونو د وروستي الف د غږ پـه اړه بايـد ووايـو، چې دغه نومونه اوس موږ کانيشکا اويشکا او کوزګا شکا ليکـو، ګومـان کېږي، چې داسې نومونه له هغې ډلې نومونو څخـه وي، چـې پـه پښـتو (ک) پای ته رسېدلي وي، لکه: خيرک، خټـک، هوتـک، شـيتک، بـارک، اڅک، زمرک، ببرک او نور، چې د اتصاف او تفخيم دا (ک) پـه پښـتو او پارسي کې ساکن شوی، خو په پخوانی زمانه کې په زور سره متحرک و، ځکه په هندي سرچينو کې دغو نومونو په پای کـې يـو سـپک حرکـت درلود، چې هغه يې په (A) افاده کړی دی.

لکه د کشمير تاريخ د کلهنه(۱۱۴۸م) په تآليف کې د دې کوشـاني پاچاهانو نومونه کنشکه، هوشکه او جوشکه راغلي دي، چې پـه کشـمير کې کنشکه پوره - هوشکه پوره - جوشکه پوره درې ځايونه د هغـو پـه نومونو مشهور وو (۱) سربېره پر دې په (که) پای ته رسېدلي نومونه لکـه

۱- راجه ترنګيني، د اورل ستين ژباړه، د لندن طبع، ۱۹۰۰، ۳۰ مخ، لومړی ټوک، لومړی ترنګيني،۱۶۸ اشلوک.

Rajnaka,Cothika, Jalauka, Asoka, Janaka او نور په همـدې تـاريخ کې ليدل کېږي.(۱)

دغسې نومونه تر اوسه په پښتو ګرامـري قوانينـو کـې اوښـتونکي دي، لکه:

کنشکه وايي (فاعلي حال).

کنشکي وويل (ماضي فاعلي).

د کنشکو شاهي (اضافي جمع).

په داسې حال ته واکوشاني ژبه له پښتو سره بشپړ ګرامـري ورتـه والی لري، چې په اوسنی پارسي کې نه تر سترګو کېږي.

## ۷- اضافت او توصيف

الف: تمليکي اضافت په کوشاني ژبه کې د M په ځانګړې نخښـه ادا شوی، چې له خپل مخکې او وروسته څخه د فاصلې (O) په نښې سره جلا کېدۀ، لکه: د ماليز دويمه کلمه ورپسې درېيمې کلمـې کنشـکه تـه مضاف شوې او (ماليز + م + کنشکو) د هغه اضـافي ترتيـب دی، چـې د اوسنی پارسي له اضافي ترتيب سـره سـم دی، يعنـې لـومړی مضـاف، ورپسې د اضافت نښه او تر ټولو وروسته مضاف اليه راغلی دی. ښـکاره ده چې کنښکه د مضاف اليه په حالت کې په کنيشکو اوښتی دی.

۱- د لومړی ترنګيني همدا کتاب ، ۴، ۴۸۹.

همدارنګه ۱۱۵ - ۱۱۶ کلمې هم د همدې تمليکي اضافي ترکيب په قاعده بايد وشمېرو (اسسکو + م + ساد) خو څرنګه چې د اسسکو دکلمې ريښه معلومه نه ده، له دې امله په يقين نه شو ويلای، چې (م) د لومړی کلمې جزء دی که د اضافت نښه.

ب: يو بل ډول اضافت هم په دې ډېرليک کې ليدل کېږي او پرلپسې د (I) په نښه افاده شوی دی، چې د پارسي ګرامر همدا موجوده اضافي کسره به وي او دا اضافي (I) يې په ليکدود کې په داسې ډول ښيل کړی، چې تر مضاف وروسته يې د فاصلې يوه نښه (O) ايښې او وروسته يې د مضاف اليه پر سر (I) راوړی دی. د ساري په ډول لروهومينن + ی + اير (د اور سپېڅلی ځښتن) او همدا اضافي ترکيب يې د دري ژبې په (هـ) پای کلمو کې داسې ليکۀ: (پرستنده ی آتش) چې کټ مټ يې له کوشاني املا سره سمون درلود.

خو همدغه اضافي (I) د زويولی په اضافت کې هم استعمال شوی، چې د ۵۷، ۵۸ کلمو په منځ کې موجود دی (بوسر + ی + شيزوګرګ) چې بوسر بن شيزوګرګ افاده کوي.

ج: کله يې د ننني پارسي په څېر له کومې ځانګړې نښې پرته له دوو کلمو اضافي ترکيب جوړ کړی دی، لکه: کوزګاشکي پوهر = کوزګاشکي پور. بورزو مهر پوهر = برزمهر پور، چې اوسنی ترکيب يې (برز مهرزاده) او (۱۴۵، ۱۴۶) خودي فرومان يعنې (فرمان خدا) هم



د(اوښتون) له همدې مقولې څخه دي، چې هغه ته اوښتی اضافت ويلای شو.

د- توصيفي ترکيبونه:

توصيفي ترکيبونه په کوشاني ژبه کې عموماً د پښتو غوندې دي، چې لومړی صفت او ورپسې موصوف راځي، لکه: (۱۳۶، ۱۳۵)مشت خرګومن (لوی درمند) (۱۴۸، ۱۴۹) ايومن نوبخت (نو بخت ايمن) خو په هغو ځايونو کې، چې صفت د لقب په ډول وي تر موصوف وروسته دی، لکه (۴، ۵) کنيشکو انند (۱۱)کنيشکا بهره ور يا کنشکي نامور.

## ۸_ د اتصاف او تفخيم ک او ګ:

د دغو دوو تورو شرح د کلمو د تفصيل په ۱۱ لمبر او د همدې پايلو او کتنو په ۶ مبحث کې ورکړی شوه. په کوشاني ژبه کې کاف پای نومونه ډېر وو، چې په پښتو کې يې ښېلګو ته په ۶ لمبر کې نغو ته وشوه، خو دغه (ک) د کوشاني ژبې د اوصافو په پای کې د (G) (ګ) په املا ليکل شوی؛ نو داسې ښکاري، چې د هغه غږ ښايي د ک او ګ ترمنځ و. لکه څنګه چې مې په (۱۱) لمبر کلمه کې شرح ورکړې ده، په پهلوي کې هم کله (ک) او کله (ګ) تلفظ کېدۀ. د دې ډول کلمو له معرباتو څخه ښکاري، چې عربو دا غږ د کلمو په پای کې (ګ) اورېدلی او څرنګه چې يې نه شو تلفظولای نو هغه يې په (ج) اړولی دی. د ساري په ډول د کار نامګ کلمه يې کار نامج او برنامګ يې برنامج کړې ده.



په دې ډېرليک کې د اتصاف او تفخيم (ګاف) د يو شمېر کلمو پــه پای کې موجود دی، لکه (۲۴) آب بــګ، (۴۹) خوديــوګ ، (۶۹)ايــوګ، (۱۱۹) البرګ او (۱۳۵)هروهګ. ګومان کېږي، چې دا غږ تــر (I) وروســته په (X - خ) بدلېده، لکه د اسلامي پېر د لويک کلمه، چــې د دې ډېرليــک په (۵۶) لمبر کې LOIX راغلې ده.

## ۹- په ساکن پيل(ابتداء په ساکن)

په اوسنۍ پارسي کې په ساکن پيل نه لرو، خو پــه پښتــو او نــورو آريايي ژبو کې په ساکن پيل شته، لکه ستوری، لمر، ولاړ او داسې نور.

پښتو په دې برخه کې له کوشاني سره يــو ډول ده، ځکــه پــه دې ډېرليک کې ځينې کلمې شته، چې لومړی توری يې ساکن وي، لکــه ۲۵ او ۳۱ لمبر ستاد (ماضي فعل) چې په مضارع حالت کې يې ساکن (C) په (AC) اوښتی دی(۴۰) او د ۱۴۶فرومان په کلمه کې هم (ف) ساکنه ده.

۱۰-په پارسي او پښتو کې د کوشاني تورو بدلون:

په کوشاني ژبه کې يو شمېر ادوات وو، چې د هغو په پای کې (D) توری و، خو که له دې غږ څخه مخکــې د علــت تــوري (A -O -I) وي، داسې کلمې پښتو او پارسي ته د لېږد په حالت کې لنډې شوي او د هغو پای (D) د (هـ) په سپک غږ اوښتی يا حذف شوی دی.

OT يا OD د پارسي په (و) = د پښتو په (او) اوښتي او لنــډ شــوي دي:

| کوشاني | | دري | | پښتو |
|---|---|---|---|---|
| PID | = | (به) | = | (په) |
| KID | = | (که) | = | (چې) |
| CAD | = | (چاه) | = | (څاه) |
| TID | = | (تا) | = | (تا) |
| KALD | = | (کی) | = | (کله) |

خو دا قاعده په فعلونو کې د منلو وړ نه ده، ځکــه د (ســتاد) فعــل اوس هم استاد دی او له (A) څخه وروسته دال يې نــه دی لوېــدلی. يــو شمېر کوشاني کلمې په اوسنۍ پارسي کې د ځينــو حرکــاتو پــه بــدلون موجودې دي، لکه: خشت د دويم، درېيم او څلورم په سکون = پارســي خشت پښتو خښته.

کِرد (د کاف په کسره): د پارسي کَرد (د کاف په فتحه)

پوروُوت= پارسي پرورده = پښتو پروراوۀ.

پوهر= پارسي پور = پښتو بور.

نوبِخت (د ب په زېر)= پارسي نوبَخت د ب په زور.

فرومان د لومړي په سکون= د لومړي په زور پارسي فرمان.

خِرګومن د خ په زېر= پارسي خرمن د خ په زور.

د کوشاني د (لام) اوښتل د پارسي په (د):

ماليز (کلا) پارسي مادژ.

نوشال (نوی محل) پارسي نوشاد.

ښال شاد پښتو ښاد

د کوشاني د (لام) اوښتل د پارسي او پښتو په (ر):

الو: پارسي (روان) پښتو اروا.

د (هـ) زیاتېدل د هغو کوشاني کلمو په پای کې، چې په الف پای ته رسېدلې وي:

شا = پارسي شاه.

ما = پارسي ماه ] په یوه نسخه کې (شاه - ماه) هم راغلی دی.

## ۱۱_ تذکیر او تآنیث

تر هغه ځایه چې د دې ډېرلیک کلمو ته ځېرنه وشوه،د تذکیر او تآنیث نښې پکې نه ښکاري او غالباً په کوشاني ژبه کې هم د پارسي په څېر د کلمو د تذکیر او تآنیث توپیر نه و، چې په دې برخه کې کوشاني ژبه له پښتو سره توپیر لري او باید پښتو له کوشاني ژبې نه وي رابېله شوې، ځکه چې که چېرې له کوشاني څخه زېږېدلې وای، نو باید دغه ځانګړتیا یې نه درلودلی، خو اوسنی پارسي، چې نېغ په نېغه د دې ژبې لور ده په کلمو کې یې د تذکیر او تآنیث د خاصیت رعایت نه دی ساتلی.

## ۱۲_ تاریخي پایلې

الف: د بګ لنګ (بغلان) اصلي بنسټ اېښودونکی نومیالی (بهره ور) بګ شا کنیشکي و، د بابک شاه ((لوی پاچا یا خدا شاه)) دوه لقبه انند((بهره ور)) او نامو برګ (نومیالی) راغلي دي، چې د ډېرلیک لیکونکو هغه عظیم شاه او د بګ لنګ بنسټ اېښودونکی نومولی دی.

ب: د بګ لنګ کلا او ارګ یې مالیز = مهادژ (لویه کلا) بللې ده، چې کانیشکا هغه په بیړه او ژر جوړه کړې وه، همدا ودانی یې د معبد یا مندر په نامه هم یاده کړې ده.

ج: د دې معبد ځانګړی نوم (نوشالي = نوشاد) و، چې شرح یې په (۳۵) لمبر کې راځي.

د: د کانیشکا تر مړینې وروسته، د دې معبد اوبه لړې شوې له همدې امله د اور لمانځونکو له هغه سره مخه ښه وکړه.

هـ: د کانیشکا د پېر د ۳۱ کال په پسرلي کې (۱۶۰د م په شاوخوا) هغه وخت چې بغپور لویک بوسر د اروا ښاد شیزو ګرګ زوی د کوشاني د شاهنشاهۍ تر واک لاندې په دې خاوره کې واکمني درلوده، د دې پېر له نومیالیو څخه یو نوکو نزوک، چې د خدای او ایو من نوبخت (شاه او د هغه صدراعظم)په فرمان د کارنکي منصب (د ماریګ کورنی) او د کانسیسګییم رئیس (؟) یې درلود او د نوموړي لویک بوسر له خوا د اوبو فریستار (د اوبو کښی) و، بګ لنګ ته راغی او د دې معبد او مندر د بیارغونې لپاره یې ځاه وکیندۀ او په پخو خښتو یې جوړ کړ او یو پراخ

غولی یې ورپورې ونښلاوۀ، د اوبو تر پیدا کېدو وروسته نوشاد معبد بیا د استوګنې ځای شو او اورلمانځونکي هلته راټول شول.

و: لکه څنګه چې د سرۀ کوتل د کیندلو پلاوي څرګنده کـړې ده، دا نوشاد دهغه له پرتمینې ودانی سره یو ځای په راوروسته وختونو کې د ډېرې زړه بوږنوونکې اورلګېدنې له امله ویجاړ شـوی دی، لکـه چـې د کیندنو په بهیر کې یې په مرکزي لیلیې، دهلیز او ان د ودانی په برنډو کې د هغه وخت د ایرو پېړې طبقې موندلې دي او وایـي د نوشـاد پـه دوارو اصلي او فرعي اورتونونو کې د اور لګېدنې نښې څرګندې دي، چې باید دغه پېښه په قصدي او ارادي توګه د لومړي ساساني شاپور د فتوحاتو په وخت (۲۴۰م) کې رامنځ ته شوې وي.(۱)

ز: هغه ځاه چې دا ډبرلیک یې د ویسـتلو معلومـات ورکـوي پـه کیندنو کې کشف شوی او تر اوسه هم پـه هماغـه خپـل لویـوالي سـره موجود دی او هم د هغې ویالې آثار له ژورو کینـدنو څخـه راښـکاره شوي، چې په دې ډبرلیک کې یې یادونه شوې ده.

ح: د بګ لنګ د نوشاد او مهادژ په بیارغاونه کې له همـدې نوکـو نزوک سره څو کسه نور هم ګډونوال وو، چې ختیځپوهانو هغـوی د بیـا رغونې کمېټه نومولې ده، د ډبرلیک په پای کې د هغوی نومونـه ان د دوو کسو د لاسلیکونو له نښو سره لیدل کېږي:

لومړی: بورزو مهر (بوزرجمهر)

۱- د سره کوتل رسالۀ د شلوم برژه په قلم ۵، ۱۴ مخ.

دویم: کوزګاشکي پور.

درېیم: میره من.

څلورم: امیره من بورزو مهر پور (امیره مـن د لـومړي یـاد شـوي بورزو مهر زوی)

ط: پـه دې ډبرلیـک کـې د هغـه وخـت د پاچـاهي منصـبونو او حکومتي ارکانو نومونه د هغوی له کورنیو سره یو ځای راغلـي، پـه دې تفصیل:

۱- بګ (لوی پاچا).

۲- خودی (خدای، پاچا، خدیو).

۳- بګ پوهر (بغپور، فغفور، خدازی).

۴- لویخ (لویک) کورنی نوم.

۵- کرل رنګ (کنارنګ) د یوه کورني عسکري منصب نوم.

۶- ماریک (کورنی نوم).

۷- استل ګانسیګییم، ستر ګانسیګییم؟ د ګانسیکییم رئیس؟

۸- فرستار آب (کښی یا میراب).

۹- ایو من، ایمن کابو (په غالب ګومان تـر خـدای شـاه وروسـته لومړی وزیر).

د دې کلمو د تفصیل او د هرې کلمې د شـرحې لپـاره د کلمـو د تحلیل برخه وګورئ.

ی: د کوشاني ژبې د دې ډبرلیک له مطالعې څخه داسې پایله اخلو، چې په افغانستان کې د اوسنی پارسي ژبې مور د میلادي پېر له لومړیو څخه موجوده وه او پارسي ژبه له پهلوي څخه نه ده زېږېدلی، بلکې د افغانستان په چاپېریال کې يې د زمانې په تېرېدو له پخوانی کوشاني بڼې څخه اوسنی بڼې ته بدلون موندلی دی او تر څنګ یې باید ووایو، چې پښتو ژبه هم ښایي په هماغې زمانې کې کټ مټ لکه د اوسني پېر غوندې د افغانستان په غرونو کې ویل کېده، ځکه د پښتو او کوشاني تآثیر او تآثر د کلمو په تحلیل کې ښکاره دی.

## ۱۲- د دې ډبرلیک درې نسخې

د زمانې له هېښندو(عجایبو) څخه دي، چې د بغلان د سرهٔکوتل په کیندنو کې په هغه ځای کې، چې دا د نوشاد معبد او د کوشاني پېر اورتون پکې ودان و، دهغه ځای د خاورو له تله یې یوه ډبره لویه ډبره او څو ښلا ښلې وړې ډبرې را ایستلي دي.په پایله کې یې کیندل شوې ډبرې سره څنګ په څنګ کېښودې. د لوی ډبرلیک پر متن سربېره د همدې ډبرلیک دوه نور متنونه په هماغه لیکدود، تورو، نښو او خطي ځانګړنو سره لاس ته راغلل، په دې تفصیل:

۱- ما لوی ډبرلیک لومړی نسخه نومولې، چې د هغه د اوږدوالی، پسور او نورو ځانګړتیاو په اړه مې د رسالې په سریزه کې شرح لیکلې ده او داسې ښکاري، چې د ډبرلیک اصلي متن همدغه و او دوې نورې



نسخې یې په هماغه پېر یا تر هغه وروسته ترتیب کړې دي، ځکه بڼه، ترتیب، او لیک یې پوخ، متین او اصیل دی.

۲- دویمه نسخه (۲۱)ډبرینې ټوټې دي، چې (۲۷) کرښې لري او د ټوټو اوږدوالی یې ښلابښل دی. یو شمېر ټوټې څه ماتې شوي او ځینو ته لږ زیان رسېدلی، خو بیا یې هم د لومړي متن په مرسته لوستلای شو. د لاسلیک له هماغو دوو نښو سره، چې په لومړۍ نسخه کې موجودې دي. د دې نسخې لیک له لومړۍ نسخې سره ډېر ورته او په تناسب او ښکلا کې هم تر لومړۍ نسخې وروسته په دویمه درجه کې دی. د دغو ډبرینو ټوټو پسور د ۲۷۰ څخه تر ۲۹۴ ملي متره او تر ټولو اوږده ټوټه یې له ۴۰۵ ملي مترو څخه نه اوړي.

۳- درېیمه نسخه (۳۲) ټوټې تېرې دي، اوږدوالی او پسور یې ښلابښل دی، چې د دویمې نسخې په پرتله ډېر ماتوالی لري. خط یې بې تناسبه او بد دی. په لومړیو کې یې توري ډېر لوی لیکلي، په منځ کې ډېر کوچني شوي او بیا په وروستی برخه کې منځني دي او هغه د لاسلیک نښې چې لومړۍ او دویمه نسخه یې لري په دې نسخه کې نشته، داسې ښکاري، چې تر لومړۍ او دویمې نسخې نیمګړې ده. د دغو ټوټو پسور د ۲۹۵ ملي مترو شاوخوا دی. د هغو تر ټولو اوږده یې تر (۴۹۰) ملي مترو ډېره نه ده او۲۷ کرښې لیکنه لري.

د یوه ډبرلیک دا درېواړه نسخې په یوه ځای کې د بغلان د معبد د هماغو کنډوالو له پاتې شونو څخه لاس ته راغلې دي؛ خو دا ټکی



چې ولې یې له یوه متن څخه درې نسخې جوړې کړې دي؟ ولې د یو شمېر کلمو په املا کې لږ توپیر لیدل کېږي؟ او ولې یې د خط پوخوالی او د کوچنې والي او لویوالي تناسب سره توپیر لري؟ منډې له مخې موږ ته څرګنده نه ده. ښايي لومړۍ نسخه یې په هماغه ۳۱ کال د ورې په میاشت کې د بیارغونې د پلاوي تر پاملرنې لاندې د ښکلي خط لرونکي کاتب په لاس ترتیب او کیندلې وي او دوې نورې نسخې یې د هغو کاتبانو په لاس چې خط یې دومره ښکلی نه و، لیکلې وي، چې د تورو او کلمو نقل ته یې هم دومره پاملرنه نه درلوده.

د ساري په ډول لکه د احمد شاه بابا د مزار ډبرلیک یې هماغه د مقبرې د جوړولو په وخت کې په ډېر پاخه ښکلي او جلي نستعلیق خط لیکلی و، خو په دې وروستیو کې چې کله دغه تاریخي مزار بیا رغول کېدۀ، ډبرلیک ته یې له سره نوی رنګ ورکړی دی، چې هماغه ښکلا او د نستعلیق لیکنې د فن تناسب او متانت پکې پاتې نه دی. اوس نوکه تر بیا رغونې دمخه د خط انځور له اوسني حالت سره پرتله شي؛ نو جوت بدلون پکې ښکاري.

په هر صورت، د دریواړو ډبرلیکونو مطالعه د لوستونکو په ذهن کې دا خبره راګرځوي: چې لیکونکی یو کس نه دی، ځکه که چېرې دریواړه متنه په یوه وخت کې د یوه کاتب او د یوه ډېر کیندونکي په واسطه لیکل او کیندل شوي وای، دومره د خط، املا او د ظاهري ترتیب توپیر به پکې نه راتلو.



څرنګه چې څېړونکي استاد بنوینست دریواړه نسخې پرتله کړې کټ مټ هغه مخونه دلته راغونډوم، چې درانه لوستونکي د هغو له مخې دنسخو توپیرونه معلومولای شي. ما هم د کلمو په شرح کې د دغو دریواړو متونونو توپیرونو ته نغوته کړې ده، دا ټکی باید څرګند کړو:

د ډبرلیک د دوو نسخو دویمې او درېیمې ډبرینې ټوټې د هغه ځاه له منځه چې په دې ډبرلیک کې د هغه دکیندلو معلومات ورکوي، په هغه بڼه موندل شوې، چې هغه ټولې (۵۳) ټوټې د ځاه دتیږو د دېوال په منځ کې په نامرتب ډول د رغاونیزو توکو په څېر کارول شوې دي.

د دې کار لپاره دوه اټکله کولای شو:

لومړی: ښايي په وروستیو وختونو کې، چې کله یې معبد او ځاه بیا رغول، دا ډبرې چې له خپل ځایه جلا او د معمولي ډبرو جزء شوې وې، ټولې یې د نورو تیږو او ودانیز توکیوو ترڅنګ د ځاه د منځ په دېوالۀ کې کارولې وي.

دویم: ښايي چې په هماغه پیل کې، چې نوکو نزوک معبد بیا رغاوۀ او لوی (۲۵) کرښیز ډبرلیک یې دراوۀ د لومړي ځل لپاره او په آزمایښتي ډول یې د ډبرلیک دوې نسخې ترتیب کړې وي، څرنګه چې یې پر دغو ډبرینو ټوټو په بد خط او نا سمې املا لیکنې کړې وې، نو هغه به یې خوښې کړې نه وي او وروسته به د یوه بل لوی ډبرلیک په فکر کې شوې وي، چې پر لویه ډبره، ښکلي خط او سمه املا وي او هغه هغه لوی متن دی، چې ما په دې رساله کې هغه لومړۍ نسخه بللې ده.



څرنګه چې يې دغه لوی (۲۵) کربښيز ډېرليک په لويه تيږه په ځانګړې پاملرنه او ښکلي ليک ترتيب او وليکۀ نو هماغه د (۲- ۳) لمبر نسخو ټوټې به بېکاره پاتې شوې وي او هغه به يې د څاه په بيا رغولو کې پخپله د ډېرليک په عبارت د څاه په منځ کې له ميده خښتو سره کارولې وي او په دې ډول اوس دا دی ۱۸۰۰ کاله وروسته درېواړه نسخې زموږ لاس ته راغلې دي.

## د کتيبې د کلمو تحليل:

۱- EID (ايد)

(ايد) په اوستا او زړه پارسي کې (IDA) د (دلته) په معنی او هم په پخوانی پارسي کې (Aita) د (دا= This) په معنی موجود و.(۱) د دري ژبې په هروي لهجه کې کټ مټ همدا کلمه (ايذ، ايد) د طبقات الصوفيه په ډېرو ځايونو کې د (دی) په معنی راغلې ده، لکه:

اوپيشين کسی ايذ= اوپيشين کسی است. (۱۵/ ۱۱/ ۶ مخ)

خانۀ حق ايذ= خانۀ حق است، د حق کور دی. (۲۸۳مخ)

شخ شام ايذ= شخ شام دی. (۱۵۴مخ)(۲)

۱- اولډ پرشن دکنت تاليف، د اتازونی چاپ، ۱۶۴، ۱۷۴ مخ.

۲- د ملاحظې لپاره د دې کلمې په سل ګونو نورې بېلګې وګ: طبقات الصوفيه له ۵۷۹ څخه وروسته.

په پهلوي کې ايتن د (استن، هستن) په معنی مصدر و، چې د مفرد غايب صيغه (ايت) يې د (است، هست) په معنی د ارد شير با بکان د کارنامې په (۶۴ مخ) کې راغلې ده.

د پنسلوانيا پوهنتون د هندو اروپايي ژبو استاد جي کنت Kent د پخوانی پارسي په ګرامر کې وايي، چې يو غايب مفرد روستاړی مخکې په هندو اروپايي کې Eti په اوستا کې (Iti) په سنسکريت کې Ati او په پخوانی پارسي کې د Atiy په بڼه موجود و(۱) نو د کوشاني ژبې ايد ته د (است، هست) يا (اينجاست) او (اينست) په معنی د هماغې هروي لهجې (ايد) ويلای شو، چې د کندهار په پښتو کې هم (ای دی) اينست معنی ورکوي.

د يادونې وړ ده، چې په دې ډېرليک کې د (ايد) په څېر څو نورې کلمې موجودې دي، لکه، (۷) سيد- ۵۰، ۶۰ کيد - ۲۵ سيد او ۹۰،۶۸ پيد، چې دپای دال يې تر (آی) وروسته د وروستي تحول او بدلون په بهير کې بې غږه پاتې شوی او په ناملفوظه (هـ يا ی) اوښتی دی. هماغه (سيد) يې اوس د (چه، چې) په بڼه د پښتو او پارسي بياني وسيله او (کيد) يې په (که، کی) د پارسي بياني او د (اسيد) (اسې، هسې، چنين) د پښتو په تشبيه کې لرو؛ نو په همدې بنسټ د کوشاني Eid هم بايد د وروستی دال د غږ په چوپتيا سره(ای) شوی وي، چې په پښتو (هې، اې) دواړه نږدې

۱- اولډ پرشن ۷۵ ، ۲۰۰ مخ.

اشارې دي. اې خوا = هې خوا( دې خوا) او په پارسي کې هم (ای طرف) وايو، چې د (اين طرف) مخفف تصور شوی دی.

په دري ژبه کې د (ای) لنډيز ليدل کېږي، لکه د (ايدر) په کلمه کې (اي + در = اينجا) ايدون (اي + دون = اينچنين) ايرا (اي + اين را) ازيرا (از + ای + را = زيرا).

(ای) په پهلوی کې هم له ځانګړو ادواتو څخه دی او (ارای) د(چه رای) په وړاندې (د دې لپاره) په معنی راتۀ. دا تېر وتنه دې ونه شي چې (اين را) که هر څو د معنی له مخې له (ايرای) سره يو شی دی، خو په اصل کې يو له بله جلا دي. په دري کې ايرا، ايراک، ازيرا، ازيراک له همدې ريښې څخه دي. ناصر خسرو قباديانی وايي:

نيکو ثمر شو ايراک
مردم بجزء ثمر نيست

هم هغه وايي:

نيارم که يارم بود جاهل ايرا
کر اجهل ياراست يارست مارش(۱)

۲- Maliz (ماليز) دا کلمه دوې برخې ده، ما + ليز = مهادژ، چې په دې ډېرليک کې اوه ځله په همدې املا راغلې ده.

۱- سبک شناسي ۱، ۴۰۶.

وګ: (۱۶، ۲۳، ۴۴، ۷۹، ۹۵، ۱۱۲ او ۱۲۶) هيننګ دا کلمه ماديز Madiz ويلې او وايي د پخوانی‌اريانی( ايراني) له Diza څخه ترکيب دی ، چې معنی يې کلکه کلا ده. هغه د يوناني اکروپول (لوړه کلا) معنی په مؤقته توګه د هغې لپاره وړانديز کوي. زما په نظر د کلمې لومړی جزء (ما) د غټ او لوی په معنی د سنسکرېټ له مها (Maha) سره مساوي دی، چې زموږ په کلمو کې ماچين (لوی چين)، مها بهارت (لوی بهارت)، مها کهولا(مها کهول، له لويې کورنی څخه) او مهاراجه (لوی پاچا) ليدل کېږي، فرخي ويلي دي:

زچين و ما چين تا روم و روس تا سقلاب
همه ولايت خانست وزير طاعت خان(۱)

اسدي طوسي د مهراج (مها راجه نوم) داسې راوړی دی:

شهی بود در هند مهراج نام
بزرگی بهر جای گسترده کام(۲)

دا هماغه کلمه ده، چې په پهلوي کې مه Meh،په پخوانی پارسي کې Mathiyah،په اوستا کې Masao او په پښتو کې مشر وه، چې معنی

۱- د فرخي ديوان، ۲،۱ مخ.
۲- ګرشاسپنامه، ۶۳.

يې لوی او تر ټولو لوی وه(۱) لـه دې املـه ده چـې ابوريحـان البيرونـي مهاچين په عربي کې (الصين العظمی) ژباړلی دی.(۲)

همدغه (مها= ما) په ا فغاني ښاري نومونـو کـې هـم شـته، لکـه د کندهار د پخواني ښار په سوېلي سيمه کې د (ماشور) په نامه يو ځای دی (ما + شور = لوی ښار) دغه نوم اټکلي دی. بربغ + شور = شـهر خـدا (د خدای ښار) چې د هرات په شمال کې و.(۳)

خو د کلمې دويم جزء (ليز) د هيننگ په اند دپخوانۍ پارسي Diza دی، چې په سنسکرېت کې Dehi (باره، کلا ) په اوستا کې Uzdacza (يو پر بل دپاسه اېښودل) او په پهلوي کې DIZ و.(۴)

بايد ووايو، چې دکوشاني ژبې د لام د دري ژبې پـر (د) د اوښـتلو بېلګې په دې ډبرليک کې ليدل کېږي؛ چې په ۳۵،۱۱۹ او ۶۴ لمبر کلمـو کې ليدل کېږي؛ نو د کوشاني ليز په دز - دژ اوښتی دی، چې د دېـوال او کلا معنی لري، منوچهري وايي:

نگـــاهـــــدشتن دوست را زکيد زمان
هزار قلعۀ سنگين و صد هزار دزی(۱)

اوس د کلمې دواړه جزه يو له بل سره کېږدئ (مها + دز)، چې (دژ بزرگ، لوی دېوال يا لويه کلا) معنی ورکوي او داسې ښکاري چې د سرۀ کوتل معبد لويه کلا او دېوال درلودل.(۲)

۳-( M =م) يو اضافي او تمليکي رابط (م) ځو ځله په دې ډبرليک کې راغلی دی. (وګ: ۱۵، ۱۳۱) چې د سرۀ کوتل په بل ډبرليـک کـې د پلامد ليکنه هم شته. په پښتو کې اوس مفرد (مې) او جمع (مو) د همدې تمليکي اضافت يا تمليکي ضميرلپاره تر مضاف وروسـته راځـي او پـه پارسي کې هم له مضاف سره نښلي، لکه (کتـاب مـې= کتـابم) خـو پـه کوشاني ژبه کې همدغه اضافي (م) د غايب لپاره د مضاف او مضاف اليه ترمنځ راغلی (ما دزم کنيشکو) يعنې: مـادز (ملـک) کنشـکا = د کنيشـکا کلا.

پټه دې پاتې نه و ي، چې کنيشکا په دې ډبرليک کـې پـه ۴ لمبـر کې کنيشکو او په ۱۱ لمبر کې کنشيکي راغلی دی؛ نو دغـه د وروسـتي

۱- حواشی برهان، ۲۰۸۵.

۲- کتاب الهند، ۱۶۶ مخ.

۳- حدود العالم ۵۸ مخ.

۴- د برهان حواشي ۸۵۰، دا دز=ليز د افغاني ښارونو په نومونو ، لکه ګرديز او د (غزني) شالېز کې ليدل کېـږي او د فردوس کلمه په اوستا کې دوه ځله د Dacza او Dairi په بڼه راغلې ده( ونديداد۳ فرګرد۱۸ بند- فرکرده ۴۹ بند او له همدې ريښې په... ؟ کې Paradeisos په اکادي کېpadisu اوپه عبري کې Pardes و، چې د آرامـي او سرياني له لارې په عربي کې فردوس شو او معنی يې باغ و بوستان ده. په فرانسوي کې Paradis په انګليسي کې Paradise او په پارسي کې فاليز له همدې ريښې څخه ده. (د برهان حواشي ۱۴۵۵)

۱- د منوچهری ديوان، ۱۳۹ مخ.

۲ - دلته د ديس د کلمې ارتباط (وطن، مسکن) هم د يادونې وړ دی، چې په (ز) د(س) بدلېدل او د (ديه) په کلمه کې هماغه سين په (هـ) اوښتی، لکه (ده= دس) څرنګه، چې پخوانيو کليو برجونه، دېوالونه او بارې درلـودې لـه همدې امله ښايي دز = دس = ديه يو له بل سره اړيکه ولري. د ګرديز= غرديس = غردز (غرنی دېوال) په کلمـه کې دا ريښه معلومېږي او د ګرديزي په زين الاخبار کې د ګرديس املاء هم راغلې ده.

توري A بدلون بنایي د Case کلمې له ګرامري حالت سره سم وي، ځکه دغه نوم کله په (i) او کله په (O) پای ته رسېدلی دی او د هغو پر سکو په لا ندې بڼه نقش شوی دی:

Sha -o- Nan -o- kaneshki - koshan شا نن شا کنېشکی کوشان

(شهنشاه کنیشکا کوشاني)

پر بله سکه sha -o- kaneski شا کنېشکي.(۱)

نو په هغه صورت کې چې د (شاه) صفت د هغه له نامه مخکې راغلی، موصوفه کلمه کنېشکي لیکل شوې ده او پرعکس په (۴) لمبر کې څرنګه چې موصوف له خپل صفت (انند) څخه مخکې راغلی کنیشکو دی. په ځانګړي ګرامري حالت کې دغه د کلمې دشکل بدلون تر اوسه په پښتو کې شته، چې له کوشاني ژبې سره ورته والی څرګندوي.

۴- Kaneshko (کنیشکو) د دې شرح په ۳مه شمېره کې تېره شوه.

۵- Anind (انند) دا کلمه یې د فاصلې له نښې (O) سره یو ځای Oanindo لوستلې ده، له Wan (غلبه، سوبه) څخه مشتقه او موسیو شلوم برژه هغه د سوبې او بري له الهې سره نژدې ګڼلې ده؛

خو دا صفت اصلاً (انند) دی، چې د افغانستان او هند د ډېرو بودايي او برهنمي نومیالیو په نومونو کې دخیل دی.

---

۱- تاریخ افغانستان، ۱، ۲۲۴، ۲۰۱.

د هېوانڅانګ په سفرنامه کې پرلپسې د بودايي نومیالیو نومونه (آنندا) راغلي(۱) او فرخي د سلطان محمود معاصر یو پاچا د انند په نامه یاد کړی دی او د هغه (کورنی) یې نندائیان بللي دي:

دریـــن کرانـــه فـــرود آمـــد و کرانـــه بکـــرد
زمکـــر کـــردن نـنـــدای ریمـــن مکـــار (۵۲)مـــخ

او بیا سلطان محمود ته په خطاب کې وایي:

خـــــــلاف تو کـــــــــرده است نندائیـــــان را
بې آرام و بې حال و بېخواب و بې خور (۲)

د ګردېزي له شرحې څخه ښکاري، چې د سلطان محمود په زمانه (۳۹۶ هـ) کې کله چې د غزني سلطان پر ملتان حمله کوله، په لاره (غالباً د اباسین پر غاړه ویهنډ) (۳) کې د انندپال په نامه یوه پاچا واکمني درلوده، چې د جیپال زوی و او سلطان هغه مات کړی او د کشمیر غرونو ته یې پر شا کړی و(۴) چې دغه نوم هم همدا ریښه لري. د پښتو او دري له ادبي اسنادو څخه څرګنده ده، چې د انند کلمه د افغانستان په ژبو کې پخوانۍ ریښه درلوده او په پښتو ادب کې د چرچو، خوند، ګټې اخیستنې او ویاړ په معنی وه، لکه خوشحال خان چې وایي:

---

۱- د هېوانڅانګ د سفرنامې ژباړه، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۷، ۹۹، ۱۹۳.

۲- د فرخي دېوان، ۸۳ مخ.

۳ - دغه ځای اوس د سیمې خلک د (هنډ) او (هڼ) په نامه یادوي.

۴- زین الاخبار ګردېزي، ۵۳.

هوښــــيارانو څخــــه ډېـــرې اندېښنـــې دي
چې مـــلنګ د مصلی هغـــــــــه انند کا(۱)

عبدالقادر خان خټک وايي:

موږ ته څه ناحـــق عـالم وايـي پندونـه
په خپل عـــقل هر سړی کا انندونـه(۲)

په پارسي کې (آن) له ښکلا يا (حسن) څخه ګټه اخيستل چې د هر چا پخپل ذوق موندل کېږي، د حافظ د دې شعر په دليل:

شـــــاهد آن نيســـــت کــــه مـــوئی و ميــــانی دارد
بــــــندهٔ طــــــــلعت آن باش کـــــه آنی دارد. (۳)

نو که (آن) د تملک او وصف له يوه روستاړي (اند) سره ونښلوو، د پښتو ځلند او ګرځند په څېر (انند) کېږي، چې معنی به يې متمتع، ګټه اخيستلی او يا دخوندونو اخيستونکی او بريالی وي. څرنګه چې دا کلمه د افغانستان د ژبو له ګرامر سره سمه جوړه شوې ده او هم په ادب کې پياوړې ريښه لري، نو ولې يې ليرې يوسو؟

۶- ۷ Bag-Lang (بګ لنګ - بغلان)

دا نوم، چې په دې ډېرليک کې پرلپسې راغلی هم له دوو جزو څخه جوړ دی:

۱- د خوشحال خان ديوان (۴) مخ.
۲- د عبدالقادر خان خټک ديوان، ۹۸ مخ.
۳- حواشي برهان، ۶۴ مخ.

لومړی بګ: بغه يا بګه چې په دې ډېرليک کې پرلپسې راغلی او په ټولو لرغونو آريايي ژبو کې د (خدای) په معنی و. په پخوانۍ پارسي او اوستا کې Baga او په سنسکرېټ کې بهاګه و(۱) چې په پخوانيو نومونو کې ډېر دخيل دی. په روسي کې هم بغ د (خدای) په معنی دی او د دې نومونو په پيل کې ښکاره دی:

بغ پور (عربي شوې يې فغفور يعنې خدا پور) بغستان (د پارس اوسنی بيسقون د خدای ځای) بغداد = بغشور= بغني= بغلان (د ښارونو نومونه)، بغان يشت (د اوستا يو جزء) بغار (دايزنګي) بغاوي (سرپل) بغک (سمنګان) بغيا (د کورمې سيمه) بغاوردان (هرات) د افغانستان د ځايونو نومونه.

خو په پښتو کې دغه کلمه د کوشاني ژبې او د سرهٔ کوتل د ډېرليک د (بګ) په بڼه د لوی، پياوړي او تنومند په معنی تر اوسه ژوندۍ او موجوده ده، چې د کلمې همدغه بڼه د ځايونو لکه بګرامي (کابل) بګل (هرات) بګلا (غزني) ) بګ لک (دايزنګي) بګه پای (تالقان) او بګی (ترنک) په نومونو کې تر سترګو کېږي.

شمس الدين کاکړ کندهاري شاعر، چې د ۱۲۵۰ هـ.ش په شاوخوا کې يې ژوند کاوه په يو غزل کې دا، چې ټول بيتونه يې له (ګ) په دمخه زور پای دي وايي:

۱- اولډ پرشن، ۱۹۹ مخ.

هسې شوم طــالـــــع زمـا دی
بــاطن وور پــه ظــاهر بــگ (۱)

په همدې معنی په پارسي کې ادب کې هم موجوده ده:

از چه دم از شاه و از بگ میزني
در هوا چون پشه را رگ میزني(۲)

د محمود کاشغري (۴۶۶ هـ.ش) له لیکنــې ښــکاري، چــې د بــگ کلمه هغه پېر د ختیزې تورکي په ترکیبونو کې د (امیر) په معنــی دخیــل شوې وه(۳) ناصر خسرو وایي:

خاتون و بگ و تگین شده اکنون
هر ناکس و بنده و پرستاری (۴)

څرنګه چې د بگ کلمې اصل په اوســتا، سنســکرېت او پخــوانی پارسي ژبو کې لیدل کېږي، باید ووایو چې دې کلمې د امو په څنــډو او تخارستان کې تر ختن پورې له آریایي قبیلو سره د تورکي قبیلو د ګاونډ او اړیکو پر مهال د هغوی ژبو ته هم ورغلې ده.

خو د ایران او هند د دښتو په آریایي ژبو کې یې لومړی د خــدای معنی درلوده او وروسته مجازاً د لوی او غټ پــه مانــا هغــو پاچاهــانو او واکمنانو ته هم ویل شوې، چې ځان ته یې د (خدایي) نسبت کاوۀ، لکــه

۱- د شمس الدین کاکړ دیوان،کابل چاپ، ۶۶ مخ.
۲- مثنوي، لومړی دفتر، (۴۸) مخ.
۳- دیوان لغات الترک، استانبول چاپ، ۱۳۳۳ ق، لومړی ټوک، ۵۰ مخ.
۴- د ناصر خسرو بلخي دیوان، ۴۶۹ مخ.

خدای او خداوند، چې په ادبي او جغرافیایي کتابونو کې د کابل خدای، زابل خدای، ګوزګان خداه، سامان خداه او بخارا خداه پــه نومونــو کــې لیدل کېږي.(۱)

خو د بگ کلمه په پښتونومونو کې هم موجــوده وه، لکــه د ۱۱۶۰ هـ. په شاوخوا کې د اعلیحضرت احمد شاه بابا د دربار صدراعظم چــې په سردار شاه ولیخان بامیزي مشهور و، اصلي نوم یــې بګــي خــان دی، چې هماغه پخواني بگ ته به منسوب وي. د هندي د بهګوان (خدای) په کلمه کې هم همدا ریښه پرته ده.

انګ: خو د (انګ) کلمې دویمه برخه هم لرغونې کلمــه ښــکاري، چې د هېواد د نومونو په پای کې تــر اوســه هــم شــته، لکــه ســالنګ (د هندوکش په زړه کې) بشلنګ د (د هلمند ناوه) الیشنګ (لغمــان) مســتنګ (بلوچستان) زرنګ (سیستان) پوشنګ (د هرات لوېدیځ) ګیرنګ (په مــروه کې یو ښار) ودرنګ (په غور کې یوه کلا) چې عربي جغرافیه لیکونکو د کلمې دغه وروستی برخه انګ په انج بدله کړې او د دغو ښارونو عربــي شوې بڼې یې فوشنج، بشلنج، زرنج، جیرنج او مستنج لیکلې دي.(۲)

د هیننګ د وینا له مخې ایراني کلمه بګه- دانګه، د بگ لنګ د نامۀ ریښه ده او په لاندې دلیل کولای شو دویم جزء (انــګ) د اور پــه معنــی واخلو:

۱- ابن خرداد، ۳۹ مخ او د فردوسي شهنامه او زین الاخبار ګردیزي ۱۳، مخ.
۲- احسن التقاسیم، ۳۰۶، ۳۱۲ مخ او صطخري ۲۳۹ مخ.

۱- د سرۀ کوتل په معبد کې د اورتون او سپېڅلي اور آثار ښکاره شوي دي.

۲- د هندوکش د درو د یو شمېر پاچاهانو او وړو کوشانیانو د سکو پر یوه مخ د اورتون نقش ضرب شوی و.

۳- دغه انګه د اور په معنی په ویدا کې اګني Agni (د اور خدای) و، چې د آذر د اور ساتنې پرښته او د اوستا Athr دپخوانی پارسي Atar د پهلوي Atur او د پښتو اور نومونو په راوروسته هند و ایراني زمانه کې دود ومونده.(۱)

د بندهش په ۱۷ څپرکي کې د (آذر فروبغ) یعنې (آتش فرۀ ایزدي) په نامه د یوه لوی اورتون یادونه شوې ده، چې د هغه موقعیت یې د کابلستان پر روښان غرۀ یاد کړی دی(۲) که څه هم په یقیني توګه نه شو ویلای چې داغر چېرې و؟ خوڅرنګه چې د دې نامه په پخواني شکل کې هماغه پخوانی انګ د آذر په بڼه او هماغه بغ (خدا) موجود دی؛ نو ځکه ویلای شو، چې د روښان د غره اورتون هماغه د بغلان د سرۀ کوتل موندل شوی اورتون دی. د روښان غر اوس هم د بدخشان په جرم کې په همدې نامه پروت دی او ښایي دغه نوم په پخوانیو وختونو کې پراختیا درلوده او اوس لکه د ډېرو جغرافیوي نومونو په څېر لنډ او ځانګړی شوی وي. دا هم ښایي چې په هماغو وختو کې هم لکه د اوس

۱- اولډ پرشن، ۱۶۶مخ. د برهان حواشي، ۲۲ مخ.

۲- یسنا ۱/ ۱۳۲ مخ.

په څېر بغلان رسماً له کابلستان سره اړوند او د همدې تاریخي خاورې جزء و، ځکه آذر فروبغ د بګ لنګ د نامه کټ مټ ژباړه ده چې د دواړو معنی خدایي اورتون ده.

خو که موږ احتیاطاً آذر فروبغ چې د بندهش په څرګندونه تر خوارزم وروسته د کابلستان د روښان پر غره و، همدغه د بګ لنګ اورتون ونه ګڼو، دومره ویلای شو، چې د فرهمند ایز دی اور د کابلستان په غرونو کې موجود و او دا خبره هم په دې خاوره کې د اورتونونو شتون ثابتوي او په دې تسمیه کې هماغه پخوانی انګ په (آذر) یعنې (اور) تعبیر شوی دی.

۴- زموږ بل دلیل، چې (انګ) د اور په معنی منو لغوي دلیل دی، په دې معنی چې: د دوزخ اوسنی کلمه په وروستنی اوستا کې د دژانګهو DUZHAN GHU په بڼه موجوده وه، چې اجزا یې دژ = بد و خراب + انګهو = اور، جمعاً د بد یا خراب اور په معنی دی(۱) چې همدا د کوشاني ژبې انګ دی.

۵- د انګ دې پخوانی کلمې په اوسنیو پښتو لهجو کې ریښه ځغلولې ده، او په پښتو کې په ډېرو کلماتو د هغې اغېز پاتې دی. انګار او انګاره اخګراو قوخ (قوغ) سکروټې او انګار دی، چې لومړی جزء یې هماغه تاریخي انګ دی. انګل په پښتو کې د څوږ او تونـدی په معنی دی، چې د اور له اړوندو صفاتو څخه شمېرل کېږي. انګازه هم د تېزې

۱- یشتونه ۲، ۱۷۰، د برهان حواشي، ۸۹۶ د بارتولد په حواله، ۷۵۶ مخ.

او توندی په مناسبت همدا ماده لري. انګولا تېز غر دی. ښایي انګلیسي کلمات ANGER (قهر) او ANGRY (قهرجن) هم د تېزی او توندی په مناسبت او ANGEL کلمه نور او رڼا ته په نږدې والي همدا ریښه ولري.(۱)

د ملا فیض الله کاکړ(د ۱۱۶۰هـ.ش شاوخوا یاني د احمد شاه بابا معاصر شاعر، چې اصلاً د سلیمان غرهٔ له لمنو ژوب څخه و) په یو پښتو شعر کې همدغه کلمه کټ مټ راغلې ده:

زړګي بند کړمه په منځ د پاڼ و پړانګ
سوځي زړه لکه پېلوځي په بلانګ

دغه (بلانګ) یوه مرکبه کلمه ده له بل (روښانه) او انګ (اور) څخه لکه چې شاعر وایي:

زړه مې لکه شونتې په بل اور کې سوځي، نو د پښتو (بلانګ) بل اور دی. دا ټکی باید په پام کې ونیسو، چې د بغ لنګ په سغدي ښه یعنې بغدنګ او ایراني بغدانګه کې د بغ او انګ ترمنځ یو (د) هم موجود دی، چې دغه دال په پښتو کې هم کله په (لام) اوړي، لکه دیوار، دېوال او غربیل، غلبېل. د همدې ابدال نورې بېلګې د همدې ډېرلیک په ۲، ۳۸، ۱۱۹، ۶۴ لمبر کلمو کې موجودې دي.

۱- د انګشت لغت(د ک په زېر) د خروش او انګار په معنا تر اوسه د کابل او پنجشیر په غرونو کې دود دی، په لاتیني کې INGNITE اور لګول او روښانول دي، چې په اروپایي ژبو کې ډېر مشتقات لري.

نو که دغه نوم په اوښتي اضافي ترکیب (بغ د انګ) وي، یعنې د بغ انګ (د خدای اور) وروسته به په پښتو لهجو کې د تورو د ابدال له قواعدو سره سم بغ دانګ، بغلنګ، بګ لنګ او بغدنګ شوي وي؛ خو دغسې نومونه د زمانې په تېرېدو او کارېدو سره توږل او سپک کېږي، لکه کوشاني بګ لنګ چې ډېروتوږلو بغلان شو. دغه بدلون کله د ښارونو په نومونو کې لیدل کېږي، لکه د بدخشان نوم، چې په چیني کتابونو کې تر مېلاد دوه پېړی دمخه (تسه، نګ، لنګ) راغلی دی، چې وروسته د هېوانڅانګ په سفرنامې ( ۶۳۰م شاوخوا ) کې (پو، تو، چنګ، نه) او تر هغه وروسته د (یو ان شي) په ادبیاتو کې (به، ده، هه، شنګ) دی(۱) چې د کلمې د وروستی جزء یعنې (انګ) وروسته په (آن) واوښت او بدخشان شوی.

بله بېلګه: د ګوزګانان د غرهٔ (سنګ چهارک) نوم خلک تر اوسه (سان) او کله سنګ بولي، چې پخوانیو جغرافیه لیکونکو هغه (سان) لیکلی دی.(۲)

د افغانستان د ځایونو په نومونو کې یو شمېر نور نومونه هم په همدې ترتیب لرو، لکه د کندهار د شمال په خاکریز کې غور دنګ، د کابل ولایت د سروبي اړوند د نغلو ختیځ یخدنګ(۳) او د اشترګرام او

۱- جستجو های قرون وسطي در منابع چیني از پترچ میدر، لندن چاپ. ۱۸۸۷م.
۲- اصطخري ۲۷۰ او حدودالعالم، ۶۰، ۹۱.
۳- د افغانستان جغرافیوي قاموس ۳، ۹۲، ۴، ۲۲۶ مخونه.

لغمان ترمنځ بادنج غاښی(۱) د کابل د شمالي بـر کوهسـتان د سـولانګ غاښی چې د کوهستان او نجراو تر منځ پروت دی.

د دې ډول کلمو د جوړښت په اړه په غوځ او پوره یقین څه نه شو ویلای، خو د یولړ سره ورته کلمو له مطالعې داسې فکر منځ تـه راځـي، چې که په راتلونکي کې له علمي او تاریخي آرونو سـره سـم وسـنجول شي؛ نو ښایي چې د هغه د پیاوړتیا لپاره غوڅ دلایل لاس ته راشي، خـو که علمي څېړنې او انساني پلټنې بلې مثبتې پایلې ته ورسېږي او یا کلک او پرېکند اسناد لاس ته راشي هغه باید د علم او پوهې په رڼا کې ومنـل شي.

۸- CID (سید)

هیننګ هغه د انګلیسي د WHAT, WHICH معادل موصول ضمیر ۵۰،۶۰ لمبر KID ته ورته ګڼلی دی.

لکه چې په لومړی لمبر (اید) شرح کې تېر شول، دغه کلمه بیـاني مو صول قید دی، چې د هغه د نورو ( ۲۴، ۵۰، ۶۰ ) بېلګو غوندې یې تـر (آی) وروسته اخري (دال) په وروستیو لهجو کې بې غږه پـاتې شـوی او سید په (سې = چې = چه) د پارسي او پښتو په بیاني واصله باندې اوښتی دی او همدغه د پښتو بیاني (چې) تر اوسه یو شمېر پښتني قبایـل (سـې) تلفظ کوي او په (هسې) کې کټ مټ پاتې دي.

۱-اکبر نامه او طبقات اکبري.

I: تر فاصلې (O) وروسته چې داکلمه له وروستی کلمې بېلوي، یو (I) شته دی، چې د پښتو له همدغې (یې) سره چې له فاعلي، مفعـولي او اضافي ادواتو څخه دی، نږدې والی څرګندوي، چې تـر اوسـه هـم لـه بیاني چې څخه وروسته راوړل کېږي، لکه چې یې وخوړ (که خـوردش) او د همدې (آی) بېلګې په دې ډبرلیک کې تـر ۳۲، ۳۴، ۴۷، ۴۸، ۵۲، ۵۵، ۵۷، ۵۸، ۶۸، ۱۰۳، ۱۰۷ او ۱۴۴ لمبر کلمو وروسته هم راغلـې دی او پـه ټولو ځایونو کې د فاصلې تر نښې وروسـته د وروسـتی کلمـې پـر سـر راځي.

۹- BAG (بګ) (خدای او لوی)

د دې د شرحې لپاره ۶ لمبر وګورئ. داکلمه تـر (شـا) د وروسـته کلمې صفت دی او بګ شاه د لـوی پاچـا یـا د خـدای پاچـا پـه معنـی ژباړلای شو.

۱۰- SHA (شا – شاه= پاچا)

په دې ډبرلیک کې د شین توري د غږ لپاره، چې پـه یونـاني کـې ځانګړی توری او نښه نه لري، ځانګړې نښه شته او داسې ښـکاري چـې په کوشاني یوناني لیکدود کې یې همدغه نښه د (ش) توري لپاره ټـاکلې وي. څرنګه چې په یوناني کې د (P) نښه د (ر) توري لپاره کار ورکـوي، نو له دې امله ځینو دا کلمه په تېروتنې لـه وروسـتی فاصـلې سـره (راو) لوستلې ده او پر هغې له هندي (راو، ورای) سره تېروتي دي. پـه داسـې حال کې چې په دې ډبرلیک کې دا کلمه پرلپسې (شا) ده او دغسې کلمې

چې په پای کې یې (هـ) وي په پخوانیو زمانو کې له (هـ) پرته لیکلې دي. د بېلګې په توګه (شناه) یې (شنا) او پادشاه یې پادشا لیکلی دی. فخر ګرګاني وايي:

سپاس و آفرین آن پادشا را
که گیتی را پدید آورد و مارا (۱)

داسې ښکاري چې تر (الف) وروسته (هـ) پای کلمې په کوشاني ژبه کې کله له (هـ) پرته هم لیکل کېدې، چې په دې ډبرلیک کې یې بله بېلګه د (ماه) کلمه ده، چې بې (هـ) لکه(ما) لیکل شوې ده (وګ ۷۳ لمبر)؛ خو د همدې ډبرلیک په دویمه نسخه کې دواړه کلمې SHAH او MAH دی، چې دواړه لکه د اوس په څېر (شاه او ماه) لوستلی شو؛ نو له دې څخه جوتېږي، چې په هغه زمانه کې یې هم کله (شا - ما) او کله (شاه، ماه) لیکلې. د بګ شا ۹ او ۱۰ کلمې دواړه د وروستي یاد شوي کنېشکي صفت دی:

((لوی کنیشکا پاچا)) د ((شا)) کلمه د همدې ډبرلیک په ۵۳ لمبر کې هم راغلې او دکنیشکا پر سکه هم په همدې بڼه شته.

۱۱- Kanshki Namobarg (کنېشکي ناموبرګ)

د کنیشکا نوم د ناموبرګ له کلمې سره د ترکیب په حال کې د کنېشکي په بڼه راغلې دی، لکه ۴ لمبر چې شرح یې تېره شوه.

۱- ویس و را مین۱.



ماریک او هیننګ هم د نامه کلمه له وروستی کلمې سره یو ځای (ناموبرګ) لوستلې ده او ماریک وايي چې دواړه کلمې نام او برګ یو له بله سره اړیکه نه لري، خو هیننګ برګ د (ثمر) یا یېره(حاصل) او بارګ (سپرلي) او بارک د (دېوال) په معنی یاده کړې او د برګ نوم یې د (نومولي) په معنی ترکیب ګڼلی دی.

ظاهراً کنیشکي نامو برګ له نومیالي او مشهور کنیشکا څخه پخوانی ترکیب دی ، خو څرنګه چې د دغو درېو کلمو کنېشکی + نامو+ برګ تر منځ فاصله نشته؛ نو له دې امله هغه ته باید یو مرکب صفت وویل شي. نامو برګ د اوسني نومیالي او مشهور معادل دی او د نام کلمه چې په پښتو کې نوم او نامه ده په پخوانیو ژبو کې ثابته ریشه لري، چې په پخوانی پارسي کې نامن (د وروستي نون په سکون) په اوستا او سنکرېټ کې هم نامن په لاتیني کې Nomen په ختني کې Nama و.(۱).

خو مزید علیه برګ، چې د درلودو او اتصاف روستاړی یاور پرې زیات شوی دی د بر Bar او بردن( وړلو) له ریښې څخه دی او په پارسي کې د برادر(ورور) او برده( غلام) نومونه هم له همدې ریښې څخه د نومیالي مشهور او مشهور په معنی دي، چې په پهلوي کې Nam bur tar و، فردوسي وايي:

۱- اولډ پرشن (۱۹۳).



کســـی از تاجـــداران بـــدین ســـان نمـــرد
کــــه تو مـــــــردی ای نام بردار گـــــرد (۱)
(شهنامه ۱,۹۳)

نو نام بر = نام ور به د نومیالي، مشهور او معروف پــه معنــی وي، چې د کنیشکا صفت دی. همداصفت په پښتو کې نومور، نوموړی = نوم + وړ شته دی، خو د کلمې وروستی (گ) په ډېرو پخوانیو پهلوي کلمــو کې هم موجود و او په دې ډېرلیک کې یې نورې بېلگې هم پــه ۲۴، ۴۹، ۱۱۹ لمبر کې هم شته دي.

د مانویانو په منظومو کې چې له تورفان څخه لاس ته راغلې دي، یوه د نور د ونې په ستاینه کــې منظومــه ده، چــې پــه هغــې کــې هــلال (میاشت) برازاگ (بشپړه سپوږمی) ده. په څنگ کې د ځینو لغتونو په پــای کې مصغر او نامصغر لیدل کېږي، چې اوس نه تلفظېږي. هغه کاف چې د عربي او پارسي کاف ترمنځ دی، لکه بندک، دستک، گندک چې په بنده، دسته او گنده باندې اوښتی دی(۲) او ډېرې کلمې چې اوس سپکه (هـــ) پای ته رسېدلې دي، د ساسانیانو په پېر کــې یــې پــه (گ) لیکلــې دي، د ساري په توگه هزار بندگ، د مهر نرسه لقب، دیهیگ (کلي مشر)، پایگان سالار (پیاده سالار) تنوریگ (زره پوش) ژندگ (ژنده پیل)

۱- حواشي برهان (۲۱۰۵).
۲- سبک شناسي، ۱، ۱۰۷ او ۳۰۳.

د کلمو د پای د همدې گاف یوه بېلگه هم (کارنامه) ده، چې هغــه یې کارنامگ لوسته او عربو هغه په کارنامج بدله کړه؛ ځکه (گ) یــې پــه (ج) اړاوهٔ. ډېر اټکل کېږي چې د کلمو د پای (گ) وروسته په پارسي کې او پښتو کې په (ک) اوښتی دی او د همدې د تفخیم یا تجلیل یا تحبیب یا اتصاف کاف بېلگې په پښتو نومونو کې ډېرې لیدل کېږي، لکــه: بــارک، اڅک، خټک، شیتک، زمرک، شېرک، هوتک، ببرک...

له دغو پښتو بېلگو څخه ښکاري، چې پښتو او کوشــاني ژبــه پــه همدې برخه کې نږدې والی لري او د پهلوي پر خلاف چــې دا (گ، ک) د پارسي د هغو کلمو په پای کې راتلل، چې په سپکه (هـ) بــه پــای تــه رسېدلې وې. په کوشاني او پښتو کې د مقیدو کلمو په پای کې د هغه یو ځای کېدنه په هغه علت پورې تړلې نه ده او د اتصاف مفهوم یې درلود.

۱۲- KIRD (کرد، کرد)

همدغه د پارسي کرد د کردن له مصدر څخه دی، چې په ۱۳۶ کې هم تکرار شوی دی، خو د کردن مصدر د عمل او کردار پر معنی سربېره پخوا د جوړنې او رغونې مفهوم هم درلود او په اوستا کــې واره پــه بلــخ کې د یما (جمشید) لومړنی ودانی او رجم کرد یعنې جم جوړې کړې (۱) ودانی ته ویلې ده. په پخوانی پارســي کــې (کرتــه=کــرد) د ښــارونو او ځایونو د نومونو په پای کې راتهٔ چې د جوړ کړي مفهوم یې درلود، لکه پار سه کرته (پازار کاد) او بلاش کرد. خسرو کرد چې فردوسي کټ مټ

۱- وندیداد دویم فرگرد .......؟

د همدې ډېرلیک په څېر د کردم (فعل) څو ځله د ودانيپه معنی راوړی دی.

جهـــان ویژه کـــردم زېتیاره ها

بسی شهر کردم بسی باره ها (۱)

په هروي لهجه او دري ژبه کې (کرد) د جوړکړ په معنی داسې راغلی دی:

آن خانقاه رمله بکرد(۲) یعنې د رملې خانقاه یې جوړه کړه؛ نو دلته هم له ۸ تر ۱۲ لمبر کلمې پورې مرکبه جمله داسې معنی ورکوي:

((چې هغه لوی پاچا نومیالي کنښکي جوړه کړه))

خو د دې ډېرلیک په ۱۷ لمبر کې همدا فعل (فرد گرد) راغلی دی، چې ګوندې هلته د بشپړېدا او پای ته رسېدا په معنی وي؛ نو ښایي (کرد) د جوړونې او رغونې او فروګرد د پای ته رسېدو مفهوم درلود.

۱۳- TADI (تادی)

ماریک دغه کلمه له ۱۸، ۷۸، ۸۱ لمبر کلمو سره ګډه کړې، چې هیننګ د هغه رایه مقنع نه ګڼي او د دې کلمې په املا کې چې په (I) پای ته رسېدلی ده له هغو پخوانیو یادو شویو کلمو سره، چې په EI (اي آی) پای ته رسېدلي توپیر شته؛ نو په دې دلیل باید دغه کلمه له هغو سره ګډه نه کړو.

۱- شاهنامه ۱/ ۴۷۱۸.

۲- د خواجه عبدالله انصاري طبقات الصوفیه، ۹مخ.

زما په نظر دغه کلمه تر (۱۴) لمبر وروسته د راغلي (اوکید) فعل مفعول دی او (تادي) په همدې بڼه او ادا اوس په پښتو کې د بیړې، توندی او تلوار په معنی شته ([1]) چې ټولو پښتو فرهنګونو ثبت کړې ده.

۱۴- OKED (اوکید)

ظاهراً د پښتو (اوکېدل، کېدل) له مصدره ماضي فعل دی، چې اوس هم د خیبر ورها خوا ټول خلک دغه مصدر داسې ګردانوي. (اوکېد) د وشو او وکړی شو، معنی لري. (تادي اوکېد) په بېړه او توندي وکړی شوه او له ۱۵ لمبرڅخه وروسته تر ۱۷ لمبر پورې جمله د هغه شرح ده.

ماریک دغه فعل د ۵۰ او ۶۰ لمبر KID یوه املایي بڼه ګڼلې ده، چې هیننګ په هغه قناعت نه دی کړی او KID موصول قید ګڼي او په حقیقت کې سمه هم نه ده، چې یوه کلمه په یوه لیکنه کې په دوو املاو ولیکل شي او د کلمې له یوه لومړي توري (O) څخه تېر شي. پټه دې نه وي، چې دا کلمه په لومړي او دربیمه نسخه کې OKID اوپه دویمه نسخه کې OKED ده، چې لومړی بڼه به یې د دوو نسخو د یوون له امله سمه وي.

۱۵- FORDAMC (فوردمس)

هیننګ او ماریک دغه کلمه د پخوانی پارسي FRATA MA او د اوستا او سنسکریت FRATEMA، چې د FOREMOST (پیشتر او

۱- پښتو قاموس، کابل چاپ، ۱۳۳۰ل، ۱/ ۲۲۰

جلوتر= مخکې او وړاندې) په معنی وي(۱) نژدې بولي، چې د صفت یـا قید یو (C)پکې ورزیات شوی دی. په سغدي کې هم د (پیل، لومړی) پـه معنی و.

د همدې نظر په منلو سره کولای شو دغه کلمه د پارسي د (بردم = برهمان دم) او د پښتو د (پر دم = پر هغه دم) ولولو، چې په پای کې یې د پښتو صفتي (س = ز) ورزیات شوی او (پردمز) یعنې پـه هماغـه وخـت کې= پر هماغه وخت او مخکې او سم له وراه وي، چې مخکنی جملـه، تادي اوکید = بېره کړی، شوه هغه هم په همدغې معنی دلالت کوي.

۱۶- MALIZ (مالیز - مهادژ)

وګ: ۲ لمبر چې هماغه مهادژ = لویه کلا ده.

۱۷- FROGIRD (فروګرد)

ماریک دغه کلمه فرا کر ته FRA – KRTA سره نږدې بولي، چې د ((پای ته رسېدلي)) معنی یې لرله. دلته فروګرد پـه ګـاف د (فراکـرد او تمام کرده شد= تر سره کړ او پای ته ورسول شو) معنی لري، چې مطلقـه ماضي ده؛ نو له ۱۵ څخه تر ۱۷ لمبر پورې د شارحې جملې معنی داسې ده:

فوردس مالیز فروګرد. یعنې (مخکـې او لـومړی مهـادژ پـای تـه ورسېد. (د فرو د شرحې لپاره ۳۶ لمبر وګورئ)

۱۸- TADEI تادیی)

۱- اولډ پرشن، ۱۹۷.

هیننګ دا کلمه چې په ۷۸ او ۸۱ لمبر کې هم راغلې ده، ۳۲ او ۳۷ لمبر (تاد) ګڼي، چې مفرد غایب ضمیر ورسره یو ځـای شـوی، چـې پـه پښتو کې هم یې =EI دی؛

په پښتو کې دغه کلمه (تایې - تـادې = تـا ازیـن - تاکـه) ده او د هیننګ تحلیل سم ښکاري.

۱۹-MANDAR (مندر، معبد)

مندر کلمه تر اوسه په هندي او پښتو ژبو کې د معبد او عبادتځای په معنی شته، چې د ریښې لومړی جزء یې د پښتو په (مـن او منـل) کـې چې د قبول، اطاعت او لمانځلو په معنی تر اوسه لیدل کېـږي.(وګـورئ: ۱۴۸)

۲۰- AB (آب)

همدغه د پارسي آب دی، چې په ۳۸، ۴۱، ۵۲، ۹۴، ۹۷ لمبـر کـې پرلپسې هم راغلی دی.

۲۱- NICTOXOT (نیست او خوت)

د دې لومړی جزء د پارسي (نیسـت) او د پښـتو (نسـته) دی، خـو (اوخوت) د پښتو د ختل له مصدره، د مفرد غایب مطلقه ماضي ده، چې د (نیست) له کلمې سره مل (نیسـت او خـوت) (نیسـت برآمـد، کمیـاب و نیست شد) معنی ورکوي.هیننګ دغه کلمه په (اوبه وچـې شـوې) سـره تعبیر کړې ده، چې اټکلي معنی ده او اصل یې (نیست اوخوت او نیست شو) دی.

اوس له ۱۸ څخه تر ۲۱ پورې د ټولې جملې په معنی باید داسې پوه شو:

تادیې مندر آب نیست او خوت.

تا ازین مندر آب نیست شد (چې له دې مندره اوبه نېست شوې)

یادونه: "تا" په منجي کې د پښتو "چې" او د پارسي "که"معنی ورکوي.( په اصل متن کې نشته)

۲۲- ACID (اسید)

په لومړي لمبر کې شرح ورکړې شوه، چې د دا ډول کلمو وروستی دال تر (آی) وروسته زموږ په اوسنی ژبه کې بې غږه او ناتلفظه پاتې کېږي؛ نو که (دال) یې حذف کړو (اسي) پاتې کېږي، چې په اوسنی پښتو کې (هسې = چنین و باین طور) وایو.

په پخوانی پارسي کې هم ACIY (اسې) د THEN (وقتی که) په معنی و(۱) نو د کوشاني (اسید) د (اسې = هسې، چنین) یوه بڼه ده.

په ۸ لمبر کې هم سید په بیاني (سې، چې) اوښتی و، چې پر هماغه بنسټ اسید باید (اسې) شي.

۲۳- MALIZ (مالیز، مهادژ)

د شرحې لپاره: وګورئ ۲ لمبر

۲۴- ABABG (آب ابګ)

۱- اولډ پرشن ۱۶۵.

هیننګ او ماریک د ریښې له شرحې پرته، د کلمې معنی له هماغه AB څخه مرکبه (بدون آب = بې اوبو) لیکلې ده.

د دې کلمې لپاره مې په پښتو یا پارسي کې ژوندی بېلګه نه ده موندلې، ښایي دا لغت مړ شوی وي. د هغه د کارولو پر مهال پوهېدلای شو، چې معنی به یې (بې اوبو او وچ شوی) وي.

د وروستي (ګاف) په اړه دې ۱۱لمبر وکتل شي.

۲۵- STAD (ستاد)

د اوستا د STA دسنسکرېټ د STHA او د لاتین د SISTO له ریښې څخه د قیام، درېدو او کېښودلو په معنی دی(۱) چې اوس ورته په پارسي کې (ایستاد) وایو.

خو د (ایستادن) مصدر مشتقات کله د ټاکلي فعل په توګه راتلل، چې له پخوانیو زمانو څخه په اوستا او پهلوي کې داسې تعبیر موجود و، لکه دات ایستات هند (داده ایستاده اند)(۲) د ارداویراژ نامې په کتاب کې وایي: (اوستا را اندر ستخر پاپکان په د زپست نهاد ایستاد(۳) کټ مټ همدغه پخوانی استعمال د منو چهري (۴۳۲ هـ. مړ) په دې شعر کې شته دی:

۱- اولډ پرشن، ۲۱۰.

۲- د جم داستان، ۵۰ م.

۳- نامه تفسر ۵۴.

باد شمال چون ز زمستان چنین بدید
اندرتگ ایستاد چو جاسوس بی قرار (۱)

بیهقي لیکي:

هوا سخت گرم ایستاده بود (۲)

ښکاره ده، چې د کوشاني ژبې (آب ابگ ستار) کټ مټ همدغه د ستاد د کلمې) استعمال یا کارول دي، چې د غایب مفرد مطقه ماضي ده.

په ۳۱، ۱۲۰ لمبر کې هم همدغه د ایستادن مشتقات راغلي، خو په هغه ځای کې اصلي فعل دی نه د بل فعل مرستیال. له ۲۲ څخه تر ۲۵ لمبر پورې د ټولې جملې معنی داسې ده:

اسید مالیز آب آبگ ستاد

هسې (چنین) مهادژ بدون آب ایستاد (ماند)= هسې مهادژ پرته له اوبو څخه پاتې شو.

۲۶- OD (اود) (دپارسي و= د پښتو او)

د عطف توری او د جملې پیل یا ربط دی، چې په شمالي پهلوي کې کټ مټ همداسې و. د مانویانو په منظومو کې، چې له تورفان څخه لاس ته راغلي دي، د نور ونې د ستاینې په یوه شعر کې همدا (اد) پرلپسې د (و) په معنی راغلې دی(۳) نو له دې ښکاري، چې د کلمې

۱- د منو چهري دېوان، ۳۰ مخ.
۲- د بیهقي تاریخ، ۱، ۵۶۹.
۳- سبک شناسي ۱، ۱۰۷.

وروستی دال د ۸، ۲۲، ۵۰، ۶۸، ۹۰ لمبر کلمو په څېر، چې تر بې غږه تورو وروسته په همدغه دال پای ته رسېدلي دی، بې غږه شو او یوازې (O) ترې پاتې شو، چې په پارسي کې (و) او په پښتو کې (او) شو. د کلمې د پای (دال) دغه بې غږه کېدا ښېلګې په نورو ډېرو کلمو او په دې ډېرلیک کې هم لیدل کېږي.

په دې ډېرلیک کې (OD) د عاطفې او واصلې د (و) په معنی په ۷۰، ۱۰۰ او ۱۳۳ کې پرلپسې راغلی دی او په ۴۳، ۱۲۹، ۱۴۷ لمبر کلمو کې د OT په املا دی.(۱)

د یوې کلمې د دې دوو بڼو د استعمال له ځایونو څخه همدومره پوهېدلای شو، چې (اوت) د ځانګړي عطف لپاره دی، لکه: ۴۲، ۱۲۹، ۱۴۷ لمبر کې او (اود) په نورو ځایونو کې د جملو او مطالبو او یا کلمو د ربط لپاره راغلی دی.

۲۷- KALD (کلد) (کله،کله چې)

هیننګ وایي چې د دې کلمې اصل په پخوانی ایرانی کې KADA و، د (کله چې) په معنی. د دې ډېرلیک د یو شمېر کلمو وروستی دال په پښتو او پارسي کې په خوځنده (هـ) اوښتی (وګ: ۱،۵۰ لمبر) او د کوشاني له کلد څخه د (کله چې، هغه مهال چې، څرنګه چې او کوم وخت په معنی د پښتو (کله) پاتې شوی دی. همدغه کلمه په ۴۶ کې هم

۱- د کتیبې په دویمه نسخه کې په ۵۰ لمبر کې هم د OT په املاء دی.

راغلې ده. څرنګه چې (دال) په لام بدلېده؛ نو له دې امله د پښتو د (کلـه) بڼه کټ مټ هماغه پخواني ايراني KADA ته ورته ده.

۲۸- AC (اس) از:

د هيننګ د وينا له مخې همدغه د پارسي (از) د FROM پـه معنـی دی. دغه کلمه په ۱۰۲ لمبر کې تکراري راغلې ده.

۲۹- LRO-HOMTNAN (لرو هومينن)

۲۹، ۳۰ کلمې ختيځپوهانو نه دي حل کـړي. د دوی پـه نظريـاتو کې ډېر توپير دی. ماريک لـومړی جـزء LRUVO لـه پخـواني ايرانـي DRUWA څخه ګڼي د Y اوپسـيلون تـوری تـل H لـولي. پـه دې اړه د يونکرو هيرز فيلد لوستنه معتبره ګڼي او دليل يې دا دی، چې د کوشاني او کوشانو - ساساني سکو په ليکنه کې يو مخې اوپسـيلون د H تـوري د غږ لپاره کارول شوی دی. د ماريک په عقيده اوپسيلون په بـاختري ژبـه کې نه کارېدهٔ، بلکې د (ء، هـ) تورو د ادا لپاره، چې په يوناني الفبې کـې نه وو کارېدهٔ. په همـدې اسـاس دی چـې د ۱۹۵۸ کـال د ايشسـياټک جورنال (۳۵۲مخ) په لوستنه کې د ډېرليک په ټولو کلمو کې چې کله (Y) راغلی هغه يې (H) لوستی دی.

خو پرعکس هيننګ وايي، چې د Y اوپسـيلون دغـه ډول کـارول عموميت نه لري، څکه د LROYO په کلمه کـې اوپسـيلون د دې لپـاره راغلی، چې د درېو او ميکرونونو OOO د پرلپسې والي مخنيوی وشـي. په داسې حال کې، چې په (LRUVASP، LROOSP) کې دغه خنډ نه و.



همدارنګه هغه عقيده لري، چې د پخوانی ايرانی کلمې د پيل DR غـږ پـه کوشاني ژبه کې په LR باندې اوښتی دی؛ نو له دې امله کوشاني ژبه لـه پښتو سره توپير لري. څکه په پښتو کې DR تر اوسه هم موجود دی، لکه په اوستا کې DROOMO ( څغاسته) او په پښتو کې درومـل (حرکـت او تلل) درومه (څه= امر).

خو د ايشياټک جورنال لوسـتنه، AS-LRO-HOMINAN-O دی.

په هر صورت د هيننګ دغه نظر د منلو وړ نه دی، چې پښتو له کوشـاني ژبې سره د DR په برخه کې توپير لري، څکه په پښتو کـې د لـرل دواړه مصدره (له کوشاني سره سم) او درلودل (د اوستا له ګروپ سـره سـم) د (داشتن يا لرل) په معنـی شـته دي او پښـتو تـر اکثـرو لهجـو جـامع ده. همدارنګه که د فاصلې نښې په (O) ومنو لکه، چې په دې ټول ډېرليک او د کوشانيانو په سکو کې همدغه د فاصلې نښه په پام کې نيول شـوې ده؛ نو د درېو (OOO) پرلپسې راتګ هم سم نه ښکاري، چې هغه يې بايـد د (Y) په اوپسيلون تبديلولای؛ نو له دې امله د اوپسـيلون لوسـتنه پـه (H) سمه ده. د دې ډېرليک په نورو ټولـو کلمـو کـې، چـې همدغـه راغلـی اوپسيلون(H) ولولو د کلمو شکل لاسمه بڼه مومي. مثلاً کـه چېـرې ۵۵ لمبر POYR (پوهر) په (وایY) ولولو، پوير به ترې جوړ شي. پـه داسـې حال کې، چې په پهلوي کې هم PUHR و، چې د پارسي (پـورا =پسـر)



ترې جوړ شو(١) او که ١٣٨، ١۴٠، ١۵٣ کلمې د مير په ځای مهر ولولو کټ مټ د اوسنی پارسي بڼه لري.

په هر حال: (لرو، هومينن) د ماريک د ډلې په لوستنه يا (لرو يو - مينن) د هيننگ په لوستنه بايد د دوه توکيز نوم وي:

لومړی لرو-لروی: د پښتو د لرل (داشتن) له مصدر څخه، چې د هغه معنی لرونکی (ښتن) وي او په پارسي کې همدا ريښه په (دارا) او (دارنده) کې په (د) د (ل) په بدلون شته دی. په پښتو کې د (لر) + و ماده يا د اتصاف او ملکيت له ادواتو څخه اوی له اصلي مادې سره نښتی، لکه برو څرگندوی او ښکارندوی.

خو د هومينن د کلمې دويم جزء له (هو + مينن) څخه مرکب دی، چې هو په اوستا، پهلوي او دري کې د (خوب) په معنی موجود او په سنسکرېت کې (سو)دی او د پښتو (هو) او ښه او د پارسي خوب هم له هغې ريښې څخه دي؛ خو مينن صفت دی د پښتو له مينې څخه د نسبتي او اتصاف د (ن) د روستاړي په ورپو ځای کېدو، لکه: خيره، خيرن (چرکين)، کډه، کډن (متاهل)، کال، کلن (سالانه)، چې د مينن معنی مينه ناک، گران او سپېڅلې ده. له همدې ريښې څخه منل يعنې قبلول کلمه هم ده؛ نو ټوله بايد (لرو- هومينن) د (مالک او ښه سپېڅلي) معنی ورکړي.

١- د پوهر کلمې د (س) بدلېدل په (هـ) په پسر کې هم په قياس سره سم دي، ځکه د پهلوي وناس کلمه (گناه) شوه او د خروه پخوانی کلمه (خروس) شوه او په همدې ډول د کوشاني او پهلوي پوهر (پسر، بس = پور) شوه.

څرنگه چې د دغې مرکبې کلمې او (O) تر فاصلې وروسته يو I (آی) د اضافت نښه، لکه د پارسي د اضافت د زېر په څېر چې پخوا په (ی) ليکل کېده، راغلې ده؛ نو بايد لرو هومينن تر هغې د وروسته کلمې مضاف وي.

دلته بايد توضيح کړو، چې دا لرو هومينن بايد په غالب گومان د اور د خدای گوتې لپاره نوم وي او دا چې (لرو) يې په هغې زمانې کې د ښتن خدای گوتی ې ته ويله، په لاندې شرحې سره دليل لري:

١- په نهم واسپ يشت کې د اوستا يو جزء دی چې په هغه کې د مزديسنا الهې (درواسپا DRVASPA صفت راغلی دی، چې د لويو او کوچنيو څارويو ساتونکې او مؤکله وه(١) چې د کلمې لومړی جزء ښايي همدغه (لرو، درو) وي، يعنې ساتونکی، ښتن، مؤکل او خدای گوتی.

٢- د کوشاني پادشاه کنيشکا، چې هغه په څرگنده له ١٢۵ څخه تر ١۵٢م شاوخوا پورې سلطنت کړی، د ډېرو ناوياتو(نايابو) سکو پر شا د ږيره ور خدای انځور تر سترگو کېږي، چې په څنگ کې يې ځغاستونکی آس دی. او د لرو آسپ کلمه (له فاصلو سره لرواسپو لوستل شوې) د شرحې په ډول ورسره ده.

اورل ستاين په خپله مقاله کې، چې د زردشتي خدايانو په نامه د هندو سکايي په سکو کې ختيځ اسناد ١، ١۵٧) دا نوم هماغه د پارسي

١- د کرستين سن مزدا پرستي، ١١۵.

لهراسپ ګڼي، چې اوستايي بڼه يې ائورره اسپه AURVAT-ASPA يعنې د چټکو آسونو لرونکی ده او پهلوي بڼه يې رور آسپ RORASP يا لورا آسپ LORAS وه، دارمستيټر د هغه خدای نوم، چې د کانيشکا د سکې پر شا راغلی، ځرنګه چې د هغه لومړی توری نه ليدل کېدۀ، نو د دروآسپ معادل، درو آسپو DROOACPO لوستلی دی. سره له دې، چې دپرسی ګارډنر د ۲۶ مجموعو د فهرست د ۷ لمبر سکې انځور په واضح ډول لرو آسپو لوستل کېږي. د (د) تعبير په (ل) د ختيځ ايران د بېدياو په لهجو کې عمومي خبره ده (وګورئ د سغدي کتيبو اندرياس ۳۰۸ مخ، ۱۹۱۰ چاپ) او په مانوي سغدي اوځينو پاميري لهجو کې کټ مټ همدغه بدلون وينو.(۱)

ځرنګه چې په پښتو کې تر اوسه لرل= درلودل د داشتن، ملکيت او څښتنوالي په معنی دي او په پارسي کې هم همدغه ريښه د در په بدلون دارا او دارنده شته؛ نو په کوشاني ژبه کې د دې ډېرليک او کنيشکاد سکو LRO او د اوستا DRV او د پهلوي LOR له يوې ريښې څخه دي؛ نو د لرو- هومينن ټولې کلمې بايد د ښه سپېڅلي څښتن (ښه سپېڅلی خدايګوټی ) وي.

پټه دې نه وي پاتې، چې په پښتو کې دغه نوم تر اوسه د خاص نامه په ډول شته، په کندهار کې دارو نومونه ايښودل کېږي او دارو نيکه

۱- مزدا پرستي در ايران قديم ،کريستن سن، ۱۱۵م.

د کندهار د سوېل د اڅکزيو له مشهورو نيکونو څخه و، چې قبيله او ان قبر يې تر اوسه پورې معلوم او مشهور دي.(۱)

۳۰- EIR (اير=اور= آتش)

ختيځپوهان د دې کلمې په معنی کې کومې پايلې ته نه دي رسېدلي. ماريک په شک او زړه نازړه توب سره د ځواک او مېړانې په معنی راوړې ده، چې د کارولو پر وخت سمه اړيکه نه پيدا کوي.

زما په نظر دا کلمه کټ مټ د پښتو د اور يعنې (آتش) کلمې د وزيري لهجې تلفظ دی او مقصديې سپېڅلی اور دی، چې د بغلان په همدې معبد کې موجود و او د نغري او ايرو آثار يې له کيندنو څخه راوتلي دي.

ځرنګه چې له (اېر) څخه مخکې د اضافت يوه (ی) د پارسي اوسني اضافي زېر سره سم راغلې ده؛ نو د لرو - هومينن کلمې د همدې (اېر) مضاف دي چې په ګډه به يې معنی د اور سپېڅلی ښه خدای ګوټی وي. پټه دې نه وي، چې اور ته د وزيرستان پښتانۀ تر اوسه (اېر) وايي او دغه د پښتو په (اېره)کلمې کې دغه پخوانی تلفظ کټ مټ ژوندی دی.

۱- ملا محمديعقوب فراهي د محمد نادر شاه افغان د تسليت په قصيده کې ويلي وو:

روح دارو داد مر پاينده خان را تهنيت

خانې ما با امارت علو سلطانی ګرفت.

۳۱- CTAD (ستاد)

هماغه ۲۵ لمبر کلمه بیا راغلې ده، چې په دې ځــای کــې د اصــل فعل په توګه استعمال شوې او معنی یې غلی (مړ) او وځنډېد شوه؛ نو له ۲۶ څخه تر ۳۱ پورې جمله باید داسې وژباړو:

اود کلد از لرو هومینن ی ایر ستاد

و کله از رب النوع نیکوی مقدس آتش ستاد

او کله چې د سپېڅلي اور نېک خدايګوتی وځنډېد.

۳۲- TAD (تاد)

همدغه د پارسي او پښتو (ت) ده، چې په دې ډېرلیک کــې پــه ۳۷ لمبر کې هم په مجرد او مفرد ډول راغلې ده او په ۱۸، ۷۸، ۸۱، ۱۰۷ لمبر کلمو کې په مرکب شکل ده، چې دال یې پاتې دی، خو په ۴۶ لمبر کــې تاکلد= (تاکله) د دال په حذف دی.

داسې ښکاري، چې د کوشاني ژبې (تاد) په وروســتیو لهجــو کــې سپک شوی، د پای دال یې لوېدلی او (تا) یې د نهایت، تعلیل او شــرط د ادواتو په ډول پاتې شوې ده، چې په پهلوي کې TAK په پخوانی پارسي کې TAVAT په پازند کې DAK وه(۱) او معنی یــې (تــردې= تــر هغــه وخته چې) ده.

۱- د برهان حواشي ۴۵۱ م.

خو دا چې ولې یې د (۴۶) کلمې په املا کې (دال)لوېــدلی او پــه نورو ۱۸، ۷۸، ۸۱ او ۱۰۷ کلمو کې پاتې دی، په څرګنده یې لامل داســې دی، چې که د ترکیب پر مهال تر (دال) وروسته علّي توری راشي، لکه E او A نو دال پخپل حــال ثابــت پــاتې کېــږي، لکــه د ۱۸، ۷۸، ۸۱، ۱۰۷ ګروپ کلمې او که چېرې صحیح ناغږن توری راشي، لکه (ک) چې پــه (۴۶) لمبر کلمه کې راغلی؛ نو په دې صــورت کــې د (تــاد) دال حــذف شوی او (تاکلد) پاتې شوی دی. د ۳۲ او ۳۳ کلمو په منځ کې یو (I)شته، چې د هماغه د ۳۴ او ۳۵ کلمو تر منځ غوندې دی او د اړیکې، نسبت او اضافت کار ورکوي.

۳۳- BAGEAC (بګییس)

هماغه ۶ او ۹ لمبر بګ کلمه ده. معنی یې لوی، غټ او خــدای ده. ښایي وروستی E یې د جمعې نښه وي، چې اوس د پښتو په ښځینه جمع کې پاتې ده. په دې ډېرلیک کې یې ښلګې د ۹۱ لمبر BACAGCE جمعې کلمه او ۱۰۸ بګییس دي. په دې ځای کې بګي د (خدایانو) معنــی لــري. خو AC د کلمې د پای روستاړی ختیځپوهانو په تېروتنې سره هماغــه د ۲۸ لمبر (از) په معنی ګڼلی دی،په داسې حال کې، چې هلته AC له خپلو مخکې او وروسته کلمو څخه د فاصلې په نښه (O) بېــل شــوی، دلتــه او ۱۰۸ لمبر کې د مخکینی کلمې د متصل روستاړي په ډول دی؛ نو لــه دې امله په دې دوو ځایونو کې هغه د (از) په معنی له (AC) پرته ګڼم په دې تفصیل:

(یز= یس) هغه روستاړی، چې په پښتو کې تر اوسه د صفت او نسبت نښه ده، لکه: غر، عزیز، لنډ، لنډیز.

تاریخي دلیل موجود دی، چې د صفتي او نسبتي ادواتو دا (یز) د کوشانیانو په وخت کې موجود و، څکه د روزګان په ډېرلیک کې، چې له هفتالي مهراکولا (۵۰ م شاوخوا )څخه راپاتې شوی، په یوناني لیکدود دهغه لومړی کلمه، بګیس (خدای) د نوموړي پاچا صفت دی (۱) نو په دې ډېرلیک کې هم بګییس د خدایي او خدایانو ته منسوب معنی ورکوي، چې موخه ترې خدای لمانځونکي او عابدان دي. او تر کلمې وروسته (I) د نوشاد (معبد) ته د دې خدای لمانځونکو او عابدانو نسبت څرګندوي، یعنې هغه عابدان، چې په نوشاد کې استوګن وو.

۳۵- NOSHALM (نوشالم= نوشاد)

د دې کلمې په اړه ختیځپوهان غلي پاتې دي او څه یې نه دي ویلي، یوازې هیننګ د هغې معنی SEAT لیکلې ده، خو زه د هغه ریښه په (نوشال) کې ګڼم په لاندې دلایلو سره:

۱/ دغه نوشاد کلمه د پارسي ادبیاتو ده، چې لام یې د دال استازی دی، لکه د مالیز = مهادز او بګ لنګ = بغ دنګ = بغلان کلمې. پر (ل) د (د) بدلېدل په دې ډېرلیک او په ټولو آریایي ژبو کې شته دي، لکه هندي (دس) پارسي (ده) =پښتو (لس) او پارسي (صد)= پښتو (سل). له دې څخه جوتېږي چې د دې ډېرلیک ژبې په دې برخه کې له پښتو سره

۱- د شرحې لپاره وګ: د غزني لویکان، ۲۷.

سمون درلود او په پارسي کې د نوشاد او دیز کلمو (دالونه) په هغې ژبه کې (لام) و.

نوشال کلمه غالباً له (نو+ شال) څخه مرکبه ده یعنې نوی شال، چې د کلمې جوړښت هم تر صفت د موصوف د مخکېوالي پر بنسټ دپښتو په څېر دی.

خو (شال) غالباً هماغه کلمه ده، چې په پارسي کې د روستاړي په توګه په یخ چال او سیاه چال کې پاتې ده اوپه پښتو کې یې د درشال یا درشل (یعنې آستان = درګاه) په کلمه کې لرو، چې د ځای د ظرفیت مفهوم یې درلود. دغه کلمه کټ مټ د (شال) په بڼه د افغان شال په ځای نامه کې خوندي پاتې ده (۱) او د سلطان محمود په پېر په غزني کې د سبکستګین د قبر شاوخوا یو ځای و، هلته محمودي زړه ماڼۍ او رسوله میدان (د سفیرانو او استازیو د هر کلي میدان) پروت و. چې په بیهقي تاریخ کې یې پرلپسې یادونه کېږي(۲) او په ځینو نسخو کې د افغان شالي په بڼه هم ثبت شوی دی. موږ د کندهار په سوېل ختیځ کې له زرو کلو راهیسې د (شال) ښار د اوسنی کوټې(۳) په پښنین ولایت کې پېژنو

۱- بابر په خپل تزک (۸۷ مخ) کې هم افغان شال راوړی دی او وایي: سجا وند د لوګر له سیمو څخه دی... او خلک یې افغان شال دي.

۲- د بیهقي تاریخ، د ډاکټر غني چاپ، ۲۵۶، ۲۶۰، ۲۷۱، ۴۲۶، ۴۹۹ مخونه.

۳- احسن التقاسیم، ۹۸ مخ.

او پر دې سربېره د (شال) په نامه ځينې نورې سيمې هم وې(1) د کونړ اوسنی شال هم د هغو له پاتې شونو څخه دی.

د کوشانيانو دا پخوانی نوشال چې له پښتو سره سمون لري، وروسته په پارسي کې نوشاد شو، يعنې نوی ځای او نوی استوګنځی. د پخواني نوبهار (نو وهاره) پرقياس، چې نوشال د بغلان د همدې معبد نوم و او ښايي تر هغه وروسته د هغه په تقليد په بلخ او نورو ځايونو کې هم نوشاد جوړ کړی وي، چې په وروستی شرح کې هغو ته نغوته کېږي.

۲/ نوشاد څه و؟ اوچېرته و؟

پارسي شاعران په تېره پخواني، پرلپسې د نوشاد يادونه کوي او د هغوی د کلام له ډوله څخه داسې ښکاري، چې د يوه ځای يا ښار نوم و، چې ښکلي پکې ډېر وو.

فرخي د سلطان محمد بن محمود په ستاينه کې وايي:

خـلــــق را قبله گشته خانۀ تو
همــــچو زين پيش خانۀ نوشاد

او هماغه بيا د سلطان محمود په ستاينه کې وايي:

هــزار بتکــــده کـنده قوی تر از هرمان
دويست شهر تهی کرده خوشتراز نوشاد

هماغه وايي:

تابوقت خزان چو دشت شود
باغهائی چو بتکــــدۀ نوشاد

فرخي بل ځای د نوشاد بهار (د نوشاد معبد) داسې راوړی دی:

تــو بــر اســـای بشـادی و ز ترکـــان بديع
کاخ تو چونکه کنشت است و بهار نوشاد

ناصر خسرو ته په منسوبه رو شنايي نامه کې وايي:

تو در فــــرخار و مطلوبيت بنو شاد
بدانجا رو چه داری بانگ و فرياد

مسعود سعد سلمان وايي:

بزرگ شاها را مش گزين و شاهی کن
بخــــواه جام می ازدست آن بت نوشاد

امير معزي د سلطان ملک شاه په ستاينه کې:

بهــر مـــقام تـرا باد نـــو بنو شـــادی
زگونه گونه بتان مجلس تو چون نوشاد

سهماغه وايي:

آ راسته شد باغ چو بتخانه مشکوی
و افــروخته شد راغ چو بتخانۀ نوشاد

هم هغه وايي:

بتی کـــو نسبت از نوشــــاد دارد
دلم هر ســــاعــت از نوشــــاد دارد

---

۱- نزهة القلوب ۶۴، ۹۴.

بروی خـــویش، کـــوی و بر زن من
چـــو لــعبت خـــانۀ نوشاد دارد

کمال اسماعیل وایي:

نور دین، شاه هنرمند، کز و نوک قلم
هر زمان عرض دهد لعبت نوشاد مرا

امیر خسرو بلخي ثم دهلوي وایي:

زاهد به پند دادن و بیچاره مست را
خـــاطـــر بسوی لعبت نوشاد میرود

له دې یو شمېر راوړل شویو بېلګو، په تېـره هغـه چـې د پخوانیـو شاعرانو ویناوې دي او د نوشاد د قبلې، د نوشاد د بوتتون یـا بتخـونې، د نوشاد د بوت او نورو په اړه خبـرې کـوي، ښـکاري چـې دې شـاعرانو نوشاد د معبدونو او بوتخونو یو تصور کړی دی او هغه ځای یې هم لکه د بلخ د نوبهار په څېر د بوت لمانځنې لـه مهمـو دینـي مرکزونـو څخـه شمېرلی دی. وروستیو قاموس لیکونکو هم د استعمال د همدې طریقـې له مخې د نوشاد ښکلاپنځونه استنباط کړې او هغه یې په همدې معنی په خپلو فرهنګونو کې ثبت کړی دی.

خو د عربو په جغرافیایي کتابونو او مسالک ممالک کې، چـې پـه نهو ټوکو کې په لیدن کې چاپ شوی او د البلاد قزوینـي، نزهـةالقلوب،



تاریخ گزیده، لبـاب الالبـاب، راحـة الصـدور او جوامـع الحکایـات، د بلاذري فتوح البلدان، طبري، د عبدالقادر بغدادي د شاهنامې لغـات او د ولف الماني د شاهنامې د لغاتو فهرست، په آثارو کـې د دې کلمـې څـه نښه نښانه نشته، یوازې په لاندینیو کتابونو کې داکلمه لیدل کېږي.

د ابن اثیر په الکامل تاریخ کې د ۲۵۷ هــ. کـال پـه پېښـو کـې د پارس او بلخ لورته د یعقوب لیث د ارادې په بیان کې وایي:

((وسار الی بلخ وطخارستان، فلما وصل الی بلخ نـزل بظاهرهـا و خرب نوشاد. وهی ابنیة کانت بناها داو د بن العباس بن مـابنجور (کـذآ) خارج بلخ. ثم سار یعقوب من بلخ الی کابل و استولی علیها الـخ....)) دا کلمه د مصر په چاپ ابن الاثیر کې په مهمل دال سره او د لیدن په چاپ کې نوشاذ په معجم (ذال) چـاپ شـوې او د سـمعاني پـه انسـاب کـې (۵۷۱الف مخ) کې لیکلي دي:

النوساری بضم النون و فتح السین بینهما الواو ثم الالف وفی پای ها الراء، هذه النسبة الی نوشار (کذ) وهی قریة ببلخ وقیل قصر ببلخ بناها الامیر داود بن العباس النوساری وقیل لماقدم یعقوب بن اللیث بلخ هرب داود بن العباس الی سمرقند. فلما رجع یعقوب، رجـع داود الـی وطنـه، فوجد قصره خرب یعنی نوسار. فانشد هذه الابیـات و شـق صـدره مـن الغم، فمات بعد سبعة عشریوما:

هیهات یا داود لم تر مثلها   سیریک فی وضع النهار نجوماً
فکانما نوشار قاع صفصف   یـــدعـو صداه بجانبه البوما



ګردېزي همدا داستان په زين الاخبار (۱۱ مخ) کې داسې راوړی دی:

((يعقوب... باميان ونيو په سة و خمسين و ماء تين(۲۵۸) او د بلخ نوشاد يې ويجاړ کړ. هغه ودانی، چې داؤد بن العباس بن هاشم بن ماهجور (۱) جوړې کړې وې، ټولې يې ويجاړې کړې، له هغه ځايه بېرته راوګرځېد او په کابل کې تم شو.))

لکه څنګه چې ليدل کېږي، لومړی خو نوشاد (چې املا يې نوشار يا نوسار هم ليکلې ده) د بلخ په شاوخوا کې و. دويم دا چې هغه د داؤد بن عباس بن هاشم بن ماينجور يا (ماهجور) له ودانيو څخه شمېرل کېدهٔ. دريم دا چې يعقوب ليث هغه ويجاړ کړی او هيڅ شک پکې نه پاتې کېږي، چې دغه درې کسه مؤرخين د يوه ځای په اړه خبرې کوي، خو يوازې د هغه ځای د نامهٔ په املا کې د خطاط د تېروتنې له امله اختلاف لري، يعني د غه ابن اثير او ګردېزي هغه نوشاد (نوشاذ) ليکلی دی او سمعاني يو دوه ځلې نوسار او دوه ځلې نوشار ليکلی دی. له ابن اثير

۱- دا نوم لکه پورته چې وليدل شو د ابن اثير په تاريخ کې (ماينجور) دی او د سعيد نفيسي چاپ په زين الاخبار (۱۱۲ مخ) کې باينجور چاپ دی، چې په اصلي خطي نسخه کې ماهجور و.
د زامباور په معجم الانساب (۳۰۷ مخ) کې بني باينجور د تخارستان اميران دي. د يعقوبي (۲۹۲ هـ. شاو خوا مړ) په کتاب البلدان (۵۳ مخ) کې آل هاشم بن باينجور راغلی دی. څرنګه چې د خراسان په اميرانو کې آل سيمجور دواتي هم مؤرخينو ته مشهور دی؛ نو ښايي چې ماهجور او سيمجور يوه خبره وي.
د غزني د پارسي ژبو په محاوره کې جور د مړوند په معنی دی؛ نو سيمجور به د سپينو د (مړوند ښبتن) او ماهجور (د ښکلي مړوند ښبتن) وي، خو دا يو اټکل دی، نه يقين.

سره د ګردېزي اتفاق نوشاد ته بې شکه ترجيح ورکوي او د هغو شعرونو په قافيو کې، چې تر مخه يې دال دی، هم نوشاد راغلی بايد واضح وي. که څه هم ياقوت د سمعاني په پيروی هغه نوشار ثبت کړی او وايي، چې په بلخ کې کلی يا ماڼۍ ده. نو ښکاره ده چې اصلي تېروتنه سمعاني کړې ده نه ياقوت.
او له همجوله کلمو څخه، چې شاعرانو د نوشاد او شاد تر منځ راوړې دي هم د کلمې شين او هم يې دال د تاييد وړ دی.

د فضايل بلخ په کتاب کې، چې شيخ الاسلام صفی الدين ابوبکر عبدالله بن عمر بن محمد بن داؤد واعظ په ۶۱۰ هـ کال کې په عربي ليکلی او په ۶۷۶ هـ کې نامعلوم کس هغه په پارسي ژبه ژباړلی دی او د پارسي ژباړې خطي نسخه يې د پاريس په ملي کتابتون کې خوندي ده، د نوشاد يادونه پکې راغلې ده،هلته نوی مطلب لري، چې داؤد بن عباس شل کاله د نوشاد په جوړولو بوخت و او تاريخ د بلخ په ولايت کې د هغه ټاکل د ۲۳۳هـ په ذي القعدې ښيي.(۱)

الماني مارکوارت د ايران شهر په (۲۹۳،۳۰۱ مخ) او روسي بارتولد د ترکستان د کتاب په (۷۷، ۷۸ مخ) کې د نوشاد نامه تر نغوته کړې او د ځينو يادو شويو مآخذونو يادونه يې کړې ده. بارتولد د سمعاني په پيروی نوشاد په ناسمه نوسار لوستی دی.(۲) پر نومړو

۱- پرشن کرستوماتي ۱، ۷۲ د پاريس چاپ ۱۸۸۳ م. کال د شيفر په زيار.
[۲]- د برهان حاشيې ۲۲۰۰ د علامه قزويني د مقالې په حواله په يادګار (۴،۹).

شاعرانو سربېره فخرالدين گرگاني(۴۴۶هـ. شاوخوا) هم په ويس او رامين کې د نوشاد يادونه په دې ډول کړې ده:

دگر باره زبان از بند بکشاد
سخنها گفت همچون نقش نوشاد
ببالای تو ماند سرو و شمشاد
اگر بر هر دو ماند نقش نوشاد(۱)

فردوسي هم دنوشاد يادونه کړې، وايي، چې نوشېروان د زېب خسرو ښار جوړ کړ او د روم اسيران يې پکې ځای پر ځای کړل.

يکی شهر فرمود نوشيروان
بدو اندرون کاخ و آب روان
بزرگان روشن دل و شاد کام
ورا زيب خسرو نهادند نام
اسيران کزان شهر ها بسته بود
به بند گران دست وپا خسته بود
بفرمود تا بند بردا شتند
بدان شهر نوشاد بگذاشتند

۱- د ويس او رامين مثنوي، ۱۰۵، ۱۱۸ مخ.

د فردوسي له دې کارونې څخه ښکاري، چې نوشاد يې د خسرو د زېب ښار د صفت په توگه راوړی او کابو د هماغو نورو شاعرانو معنی اراده يې ترې مراد کړې ده.

۳- داسې ښکاري چې نوشاد کوم ځانگړی معبد نه و، بلکې په بېلا بېلو وختونو کې په دې نامه له پخوا زمانو څخه ښکلي معبدونه موجود وو، چې له هغې ډلې په ډېر اټکل سره د کابل د شمال په بگرام کې د کوشانيانو د شاهي ښار په شاوخوا کې هم يو معبد موجود و، چې چيني يرغمل د کنيشکا پر پېر د اوړي په موسم کې په هغه معبد کې اوسېدل او د هغه موقعيت يې دبگرام د پهلوان غرۀ د شترک موړې په کنډوالو کې اټکل کړی دی.(۱)

دغه معبدا او د چيني شازي او چيني يرغملو استوگنځی هېوانځانگ د (شا- لو - کيا) SHA-LO-KIA په نامه ثبت کړی دی(۲) چې د ۶۴۴ مېلادي په جولای کې له کابل او کاپيسا څخه چين ته روان و او له دې ځايه تېر شوی و. ښايي چې د (شالو) کلمې لومړي اجزا د همدې (نوشال) له ريښې څخه وگڼو.

۴- په کندهار، پنجاب او کشمير کې يو نوم د سړک، بڼ او پرتمينې مانۍ لپاره کارېږي، چې په کندهار کې دوځايه (شالمار) په نامه

۱- د افغانستان تاريخ ۲، ۲۳۱.

۲- د هېوانځانگ د يونليک ژباړه، ۱۶۳.

موجود دي. د کشمیر او لاهور شالیمار بڼونه د هندي مغولو د اولادونو له پاتې شونو څخه دي.

نه پوهېږم چې د دې کلمې ریښه څه ده؟ خو د هغه په لومړي سر کې هم هماغه د (شال) آثاراو نښې ښکاره دي.

د پخوانیو اسنادو له مطالعې څخه ښکاري، چې کوشاني نوشال، د پارسي ادبیاتو نوشاد، د بیهقي افغان شال، عربي نوشاد، چیني شالوکیا او د کندهار او هند شالمار له یوې ریښې څخه خروب شوي دي.

په کوشاني ژبه کې نوشال (نوی ځای او نوی معبد) و او د اسلامي دورې په لومړیو کې د مغلو تر وتلو پورې نوشاد معبد، ښکلی بوتتون او د ښکلو بوتانو ځای ته ویل کېدهٔ، چې پخوانی نوشاد هم د داسې ښکلو بوتانو ځای و؛ نو د کوشاني ژبې نوشال او د پارسي ادبیاتو نوشاد د افغانستان سیمه ییزې کلمې وې او په دې نامه په هر وخت او پېر کې په بلخ، تخارستان او کابل کې معبدونه، بوتونونه او لمانځي وو، چې د بلخ وروستی نوشاد دپخوانیو اسنادو له مخې داؤد بن عباس په ۲۳۳هـ. کې جوړ کړی و او یعقوب صفاري په ۲۵۶هـ. کې ویجاړ کړ. فرخي همدغه ځای په بلخ کې له نوبهار سره یو ځای یاد کړی دی:

مرحبا ای بلخ بامی همره باد بهار
از در نوشاد رفتی یا ز باغ بهار

ای خوشا آن نوبهار خرم نوشاد بلخ
خاصه اکنون کز در بلخ اندرون آمد بهار (۱)

۵- په پښتو ژبه کې(نورشالي) یو نوم لرو، په همدې نامه یو شاعر د نولسمې پېړۍ په وروستیو کې د اباسین په وادۍ کې ژوند کاوهٔ، چې ډارمستټر یې ځینې پښتو شعرونه په هماغه ځای کې اورېدلي او ثبت کړي وو.(۲)

دغه نوم که تجزیه کړو (نور + شالي) دی، لکه چې پوهېږو (نور) همدغه لمر (آفتاب) دی او شالی به (ځای) وي؛ نو جمعاً دغه نوم لمرتون یا (آفتاب محل) معنی ورکوي، چې په دویم جزء کې یې هماغه پخوانی (شال) خوندي او ژوندی پاتې شوی دی.

۶- په پارسي کې هم د شال ریښه د محل او ځای په معنی شته. شال د لومړي په زور په غرونو کې، ډنډ، جوهړ(جوور) او د اوبو د راټولېدو ځای دی(۳) چې همدا شال = چال دی او د هماغه پخواني لغت ریښه په همدې کلمه کې خوندي پاتې ده؛ خو دډېرلیک په درېوارو نسخو کې د همدې کلمې په پای کې ترساکن د مخه یو (م) موجود و، نو شالم لوستل کېږي، چې هماغه ۳ لمبر اړیکن (میم) دی. دا خبره چې ولې دغه اضافي او تملیکي (میم) د دې ډېر لیک د نورو برخو په څېر د (O) په

۱- د فرخي دیوان، ۱۰۷ مخ.
۲- د پښتونخوا د شعرهار و بهار، د پاریس چاپ.
۳- برهان ۱۸۶.

فاصلو نه دی جلا شوی او لکه د اوسنی پارسي کلمې ته څېرمه دی، پرې نه پوهېږم، ښایي د اضافت او تملیک اتصال د کوشاني ژبې د ګرامري قواعدو پر بنسټ وي، چې اوس پرې نه پوهېږو. دلته په دریمه نسخه او۱۰۹ لمبر کې دا کلمه نیشالم NISHALM ده.

۳۶- FROXORTIN (فروخودتیند)

د کلمې لومړی جزء (فرو) دی.

دا مختاړی په ۱۷ لمبر کې هم راغلی دی، چې د تر مخه او وړاندې معنی افاده کوي. په اوستا، سنسکرېت او پخوانی پارسي کې هم و. په لاتین کې PRO و. په پخوانی پارسي کې ډېرې کلمې په دې مختاړي پیل کېږي.۱ په دري ادبیاتو کې (فرا) او (فرو) دواړه لیدل کېږي، چې د فعل د تاکید او یا د لوري د ټاکلو لپاره راځي، بیهقي وایي:

زبان فرا پیش این پاشاه بزرګ نکنند (۲) سعدي وایي:

روزی افتاد فتنه یی درشام

هریک ګوشهٔ یی فرا رفتند

خو فرو د فروایستاد، فروخشکید او مرد را فروګرفتند او له نور افعالو سره راځي، فرخي وایي:

۱- اولډ پرشن ۱۹۷.

۲- تاریخ بیهقي ۲۴۲.

از مجلس ما مردم دو روی برون کن

پیش آر ګل سرخ و فروکن ګل دو روی(۱)

په دې ځای کې د(فرو) مختاړی له XORTIND (خورتیند) د وروسته فعل اړوند دی. دا فعل له پخواني مختاړي سره (فروخورتیند) دی، چې فراخورته او فراخورده له هغه څخه دي.په پهلوي کې XVART او خورتن او په اوستا کې XVAR او XVARAITI (اکل) و. د همدې ریښې یوه بله معنی له لاسه ویستل او بربادول هم ده (۲) چې دلته ترې همدغه موخه ده.

او د دې بګییس فعل د غایب فاعل جمع ده، یعنې د دې نوشاد خدای لمانځوونکي برباد او له منځهٔ ولاړل.

تادئی بګییس ی نوشالم فروخورتیند.

تر څو چې د نوشاد (خدای لمانځونکي تباه شول؛ خو فرو خورتیند لکه د۴۰ فعل غوندې غایب جمع دی. (۳)

۳۷- TAD (تاد)

همدغه د پښتو او پارسي (تا) دی، چې د نهایت، تعلیل او شرط له ادواتو څخه دی(وګ ۳۲).

۳۸- AB (آب) پرلپسې د اوبو په معنی دی. (وګ: ۲۰)

۱- سبک شناسي ۱،۰ ۳۴.

۲- د برهان حواشي ۷۸۸.

۳- دلته د پښتو خواره او خوربدل لغت یعنې متفرقېدل او خواره کېدل او خوار (زار) هم باید له نظره ونه غورځوو او ښایي، چې خورتیند په پراګنده شدند او خوار شدند تعبیر کړو.

۳۹- LRAFO (لرافو)

په دې اړه څېړونکي کومې پايلې ته نه دي رسېدلي او ګټور څه يې نه دي ويلي؛ نو دا کلمه ناحله پاتې ده. زما په اند (لرافو) په څرګنده د لر (جوى آب= ويالۀ) پخوانى بڼه ده(۱) او لور (کندۀ سېلاب= خوړxwar) (۲) چې په پښتو کې ورته لوره وايو. د کندهار ښار په ختيځ کې د نېزونو(سپلونو) ځانګړې ناوې يا مجرا ته لوره وايي.

د لورا سيند د افغانستان په سوېل کې بهېږي، چې د پسرلي له نېزونو څخه جوړېږي، خو د کلمې وروستى (فو) چې په پښتو کې په (هـ) اوښتى دى، د ځينو پخوانيو ژبو په کلمو کې و، لکه د اوسنى پارسي (کوه) په پخوانى پارسي کې KAUFA او په اوستا کې KAOFA و(۳) چې وروستى (فه) يې په (هـ) اوښتى دى. په همدې قياس ښايي د کوشاني ژبې (لرافو) د پښتو او پارسي اوسنى ګڼ (لرو لوره) وي، چې معنى يې وياله او د اوبو ناوه ده،که د انسان په لاس کيندل شوې وي او که څه د نېز له بهېدنګ څخه منځ ته راغلي وي. څرنګه، چې دغه کلمه په جمله کې فاعل راغلې ده او فعل يې جمع دى، له دې امله ويلاى شو، چې د (لرافو) کلمه هم جمع وه. څرنګه چې د بغلان معبد په کيندنو کې

۱- حواشي برهان ۱۸۹۳.

۲- برهان ۱۹۱۱.

۳- د برهان حواشي ۱۷۳۹ او سبک شناسي ۱، ۲۱۶.

د زينې شاوخوا د اوبو د ويالې نښې راوتلې دي؛ نو د دې تفسير پخلى کوي.

۴۰- ACTIND (استيند)

دغه فعل چې د خپل ۳۹ لمبر فاعل اړوند دى، لکه د ۳۶ لمبر فعل په څېر د هماغه ۲۵، ۳۴ لمبر ستاد له ريښې څخه غايبه جمع ده، په دې ځاى کې هم اصلي فعل دى، نه مرستيال چې معنى يې داسې کېږي.

تاد آب لرافو استيند.

تا آب جوى ها ايستادند.

ترڅو اوبه د لښتي ودرېدلې.

يعنې ترڅو د اوبو لښتي وچ شول. (وروستى جمله اړوند او د دې جملې پايله ده).

۴۱- AB (آب) وګ: ۲۰ لمبر.

۴۲- ANDZ (انديز)

دغه کلمه ماريک د TO HEAP UP يعني يو پر بل اېښودل په معنى له يوې هنديزې ايراني کلمې څخه ګڼلې په داسې حال کې چې د کارولو له ځاى سره سمون نه لري.

داسې ښکاري، چې (انديز) د پهلوي او دري لغت له ريښې څخه دى. اند(AND) په پهلوي او دري کې نامعلوم عدد او لږ د عربي د بضع يوڅه معادل و، چې د دري (اندک) او د پهلوي (هندک) کلمې د لږ،

لږوالي او هر لږ څه په معنی وو(۱) خو دا چې (یز) څنګه او د کوم مقصد لپاره د کلمې له پای سره یو ځای شوی، موږ ته څرګنده نه ده؛ خو د کارونې پر مهال پوهېدای شو، چې (اندیز) فعلي معنی لري او د (آب اندک شد= اوبه لږې شوې) مفهوم افاده کوي.

۴۳- OT (اوت)

د پارسي د (و) او د پښتو د (او) د عطف تورو معادل (وګ: ۲۶)

۴۴- MALIZ (مالیز - مادژ)

وګ: ۲، ۱۶، ۲۳، ۷۹، ۹۵، ۱۱۲، ۱۲۶.

۴۵- PIDORIGD (پیدوریګد)

ماریک د دې کلمې ریښه PITA-RIXTA د مفعول نامه پخوانی بڼه، چې د ماضي په توګه استعمالېده، ښودلې ده. ظاهراً دا کلمه د پارسي د همدې (پد رود) پخوانۍ بڼه ده، چې د د پرېښودو او خدای په امانی (الوداع) مفهوم لري او په پهلوي کې PADRUT وه.(۲)

ښایي پیداوریګد دلته د ماضي فعل په توګه وي، چې نن (پد رود شد= له منځه لاړ) وایو.

او منفي مضارع یې په ۱۱۳ کلمه کې راغلې ده؛ نو د جملې مفهوم له ۴۱- ۴۵ لمبر پورې داسې دی:

آب اندیز، اوت مالیز پید و ریګد

۱- برهان ۱۷۱.

۲- برهان ۳۷۳.

آب اندک شد و مادژ بد رود گشت

اوبه لږې شوې او مادژ پنا شو

د یادونې وړ ده، چې په پښتو کې د (پریګد= پریخود) فعل او د پرېښودل = پریخودل (ترک) مصدر له همدې ریښې څخه ښکاري.

۴۶- TAKAL (تاکلد)

د (تا) د شرحې لپاره وګ: ۳۲،۳۷ لمبر.

دلته (تا) د وروستی کلمې (کلد) نه بېلېدونکی جزء دی او په منځ کې د (O) فاصله هم نه لري؛ نو داسې ښکاري: کله چې یې دا کلمه له (کلد) سره لیکله، د هغه (D) یې غورځاوۀ. د (کلد = کله) کلمې شرح په ۲۷ لمبر کې تېره شوه.

تر هغه وخته، تر هغه مهاله او ترڅو چې په معنی د (تا کله) کلمه تر اوسه په پښتو کې کارېږي. ۴۶ لمبر کلمې ته هیننګ کټ مټ همدغه د انګلیسي دUNTIL معنی ورکړې ده.

۴۷- NOKONZOK (نکونزوک)

لکه چې ماریک هم وايي، دا یو کوشاني لقب او د نوشاد د بیا رغونې د کمېټې د رئیس نوم دی.

خو ماریک د (O) فاصله او د (I) وروستیداضافت نښه د همدې نامه جزء ګڼلې ده.

په داسې حال کې، چې (I) د توصیفي اضافت نښه ده، چې تر ۲۹ لمبر وروسته هم راغلې او په دې ډېرلیک کې څو ځایه تکرار شوې ده.

دا نوم د هغه وخت د نومونو غونډې د تجليل په (ک) پای ته رسېدلی دی، چې په پښتو کې مې یې بېلګې په (۱۱) لمبر کې وښودلې، خو دلته په درېيمه نسخه کې NOKONZIK دی.

۴۸- KARALRANG (کرل رنګ)

ماريک دغه کلمه له KARA يعنې لښکر او پوځ + د رنګ څخه جوړ پوځي لقب لوستی دی، خو هيننګ وايي، چې دا کلمه کټ مټ هماغه د پارسي کنارنګ، له کنار + د رنګ DRANG څخه جوړ ويی دی، چې د کوشاني امپراتوری د ګاونډيو ولايتونو يا د يوه سرحدي ولايت د واکمن نوم. په پخوا زمانه کې يې سرحد ته د پاچاهی څنډه ويله(۱) او د هغه جمع يې د پاچاهی څنډې او د سرحد حاکمانو ته کنا رنګ وايه، چې عرب ورته ملوک الاطراف وايي. کنارنګ د لومړي (ک) په پېښ د سرحد په معنی د کنارک له لغت څخه اخيستل شوی دی. په هر سرحد کې به کنارنګان وو، چې له پخوا نه به په ميراثي ډول سرحدداران کېدل.

فردوسي د کنارنګ په اړه ډېر شعرونه لري، چې له هغه ټولو شعرونو څخه همدا د سرحداری معنی راوځي، لکه:

وزان بگذری رود آبست پيش
که پهنای اورا دو فرسنګ بيش

۱- منهاج سراج جوزجاني په طبقات ناصري کې وايي: (قلج ارسلان... غزوهای نامدار بجای آورده و عظيم نام گرفت، چنانچه کنارا فرنحه ازومالش بسيار يافتند (۱، ۲۱۲).

کنارنګ ديوی نګهبان او
همه نره ديوان بفرمان او

د کنارنګ د زړورتوب او مېړانې په اړه وايي، چې: د اطراف ملوک په دې نامه مشهور وو:

کدام است ګرد کنا رنګ دل
بمردی سيه کرده در جنګ دل (۱)

همدارنګه د فردوسي د له وينا له مخې د مروې د کنارنګ نوم (ماهوی) و، چې د شپنو(کوچيانو) مشر و:

کنارنګ مرو است ماهوی نيز
ابا لشکر و پيل و هرګونه چيز
کجا پيشکار شبانان ماست
برآوردهٔ دشتبان ماست (۲)

د (۳۴۶ هـ) کال د محرم مياشتې تاليف شهنامې په پخوانی سريزه کې، چې د دري نثر پخوانی بېلګه ده او هغه ابو منصور بن احمد المعمري دستوراً د خراسان د يوه مشهور کس ابو منصور محمد بن عبدالرزاق عبدالله فرخ په نامه ليکلې ده.

۱- سبک شناسي ۱، ۴۲۸.
۲- د مينارسکي د ويس او رامين داستان،۴۲۷.

د دې منثورې سريزې د ليکونکي په نسب نامه کې د کنارنګ نوم پرلپسې راځي؛ نو له دې ښکاري، چې د کنارنګ په نامه د اسلام په لومړيو کې د خراسان په دې لوري کې يو شمېر سړيو شهرت درلود او طبري(۱) د ۳۱هـ کال په پېښو کې دا نوم د کناري په بڼه د طوس سرحددار راوړی او همدا نوم بلاذري(۲) د خراسان د سوبو په يادونه کې کنارنګ راوړی، چې په خطي نسخو کې د طوس سرحددار کنازنګ په بڼه اړول شوی دی.(۳) همدا نوم دی، چې ابن خراد ذبه هغه د کنار (کنارنګ) په بڼه د نېشاپور پاچا ليکلی دی.(۴)

لکه چې پوهېږو د پنځمې هجري پېړی په شاوخوا کې د نسب لړی ساتل د بزګرو، موبدانو او دبيوتات (خراسان) د اوسېدونکو ترمنځ دود وو. په دې هره يوه کورنی کې د هغو د نيکونو په اړه روايات وو، چې نسل په نسل ساتل کېدل. (کټ مټ همدغه حالت اوس د پښتنو په منځ کې موجود دی) او ځينې يې په تصادفي ډول په ځينو کتابونو کې خوندي پاتې دي، له هغې جملې څخه د ابو منصور محمد بن عبدالرزاق د شپږم نيکهٔ، کنارنګ په اړه ځينې روايات دي، چې د شهنامې د ابو منصوري په سريزه کې يې وينو (۵) او دمخه ورته اشاره وشوه.

---

۱- تاريخ اللامم والملوک ۱، ۲۸۸۶.
۲- فتوح البلدان ۴۰۶.
۳- مقدمه قديم شهنامه در هزاره فردوسي ۱۴۷.
۴- المسالک و الممالک ۳۹.
۵- حماسه سرايی در ايران ۸۷.

شمس فخري اصفهانی په دې اړه ليکلي (۷۴۴هـ. شاوخوا:
((کنارنګ: ملکي واکمن ته وايي اوسرحد ساتونکی هم ورته وايي، هم د هغه مثال:

کمينه بنده ات هر جا که باشد
بود آنجا ز اقبالت کنارنګ)) (۱)

له شمس فخري څخه مخکې دغه کلمه د اسدي طوسي له خوا هم د يوه لوري د څښتن سرحددار په معنی ليکل شوې ده. د فردوسي د دې بيت په سند:

ازين هردو هرګز نګشتی جدا
کارنګ بودند و او پادشا(۲)

د خراسان د خپلواکو سيمو يو شمېر سرحددارو يا واکمنو ته يې کنارنګ وايهٔ، د بېزنتي د مؤرخ پروکوپ د وينا له مخې دکنارنګ منصب په ځينو کورنيو کې ميراثي و. د ابر شهر يعنې د نېشاپور د شمالي سيمې سرحددار ته يې کنارنګ وايه. څرنګه چې دربيم ساساني يزدګرد د عربو د يرغل له وېرې خراسان ته وتښتېد، د طوس واکمن ته يې پناه ورووړه، چې هغه ته يې هم کنارنګ وايهٔ.

---

۱- معيار جمالي ۲۸۶ د تهران چاپ، ۱۳۳۷ش.
۲- لغت فرس ۲۶۰.

د خپلواکو واکمنو د القابو په لړلیک کې یې د نیشاپور واکمن ته کنار او د طوس واکمن ته کنارنګ ویلی دی. ثعالبي په ((ملوک الفرس))کې څرګندوي، چې د طوس سرحدساتونکی کنارنګ و. د ساساني دورې په پوځي پېښنو کې کله له دې ټکي سره مخامخېږو، چې ساساني امپراتور پلانی کنارنګ د جګړې ډګر ته لېږلی دی؛ نو له دې څخه ښکاري، چې کنارنګانو پوځي دندې هم درلودې. د ګشنسپ داذ په اړه، چې د ساساني پاچا کواذ د دربار له مخورو څخه و، په ډاګه لیکلي، چې هغه کنارنګ و. حمزه اصفهاني د ابونواس د دېوان په شرح کې د طوس او مروې سرحددار کنارنګ لیکلی دی.

یوازې دپارس دختیزې سرحدي سیمې سرحددارانو ته یې کنارنګ نه وایه، بلکې په نورو سیمو کې هم دا اصطلاح کارېدله، لکه څنګه چې د ساسانیانو په پېر د پردیو استازو د منلو په دود کې چې کله به ا ستازی له کومه ځایه راتۀ، د هغو ولایتونو کنارنګان چې د استازي د لارې پر سر د ولایتونو کنارنګانوته به په کار وو، چې هر ځای د هغه له شان سره وړ هر کلی وکړي؛ نو ښایي چې د وړې سیمې واکمن ته به یې کنارنګ وایۀ. فردوسي په شاهنامه کې د کنارنګ کلمه شل ځایه یوازې د واکمن په معنی راوړې ده.(۱)

په داسې حال کې چې د کنارنګ منصب په افغانستان کې یو فوځي منصب و. د سراج الدین عثمان بن محمد مختاري غزنوي په ۵۴۴

۱- تاریخ تمدن ایران ساسانی، ۱، ۲۵۴ تهران ۱۳۳۱ هـ.ش.

یا ۵۵۴ کال مړ،[1] چې په شهر یارنامه کې نغو ته ورته شوې موجود ده، چې د سلطان مسعود ثاني بن سلطان ابراهیم غزنوي لپاره له ۴۹۲هـ. کال څخه وروسته د شعر په بڼه راغلی او په ۵۰۸هـ. سنه کې پای ته رسېدلی دی. په دې داستان کې د سیستاني رستم، شهریار د فرامرز وراره د رستم زوی پر خلاف جګړې او د افغانستان تاریخي هېواد په اړوند، چې واحده خطي نسخه به یې د برتانیې په موزیم کې موجوده وي.[2]

په دې منظوم داستان کې چې د غزني یوه تن شاعر د غزني په دربار کې ویلی و. له شاه هیتال (هیاطله) څخه یو داستان په کې موجود دی، چې په هغه کې د کنارنګ کلمه د یوه پوځي منصب په مفهوم داسې راغلې ده.

کنارنگ هیتال باشش هزار
بیآمد برآمد غوگیرو دار
چو از پیش برخاست بانگ و غریو
بجنبید از جاسپهد ارنیو
شب تارو آوای روینه خم
بتن زهرۀ شیر گردیده گم
کنارنگ غرید مانند دیو

۱- د چهار مقالې حواشي ۱۵۰.

۲- د برتانیې د موزیم د خطي نسخو فهرست له ۵۲۴ څخه وروسته.

گـــــــرفــــــته ره گــــــرد فــــــرخــنده نيو(۱)

د کنارنګ له دې شرحې، چې د برهان قاطع په لومړي فکر کــې د پوله ساتي په معنی و، خو څنګه چې په پهلوي کــې KANARANG پــه يوناني کې XANARAGHGHES او پــه سـرياني کــې QANARAG د ساسانيانو په پېر کې د نيشا پور د ابر شهر د پوله ساتو ځـانګړی سـرليک و(۲) په اوسـتا کــې هــم دکنـاره KANARA کلمــه او پــه پهلـوي کــې KANARA د کاف په فتح به وي؛۳نو له دې املــه د هغــه تلفـظ لکــه دا ډېرليک بايد د کاف په فتحه وي، خو دا ټکی چې د کوشاني د کرل رنګ د کلمې ريښه څه وه او کلمه مفرد ده که مرکبه، اوس ما ته روښانه نــه ده او د هغه تحليل موږ د راتلوونکو معلوماتو په اســاس د کوشـاني ژبــې د کلمو د ريښو په اړه، خو له دې ډېرليک روښانه نه شوه، چــې د کوشــاني پخوانی بڼه کنارنګ = کرل رنګ وه.(۴)

۴۹- I-FRE-I-XOADEOG (ی -فرې - ی - خوديوګ)

د فرې کلمې په پيل او پــای کــې د وه (I) هماغــه د (۳۰، ۵۳، ۵۶، ۱۰۴، ۱۰۸) اضافت نښه ده، چې (فرې) ته له (کرل رنــګ) ســر ه تړښــت

۱- حماسه سرائی ۳۱۰ مخ، د شهريار نامې د يوې خطي نسخې په نقل.
۲- ساسانيان کريستن سن، ۱۰۸ مخ.
۳- تتبعات ايراني ، ۱، ۱۱۵.
۴- د غوريانو تر پېر پورې د غزني او باميان ترمنځ د کنارنګ په نامه کلا وه، (طبقات ناصــری ۱، ۴۶۱)، چــې تــر (۶۰۰) هــ. پورې د دې نامه د شتون پخلی کوي.

ورکويي او اضافت جــوړوي. دويــم (I) هــم (فــرې) لــه ځانــه وروســته (خوديوګ) سره اضافت جوړ کړی دی؛

خو د فرې کلمه د هماغه ۱۷، ۲۶ او ۱۱۰ لمبر فرو له ريښې څخه ده، چې په دې ډېرليک کې پرلپسې راغلې او ښايي دکارولو په ځايونو او د خپل ګرامري حالت په واقع کېدو کې د E او O علت تورو په نښــلېدو يې بڼه بدله کړې وي، چې اصل يې فر FR دی.

دغه مختاړی په پخوانۍ پهلوي کې نه و، خو په اوستا کــې FRA په سنسکرېت کې PRA په لاتيني کې PRA او د هخامنشيانو د ډېرليکونو په پخوانۍ پارسي کېPRO د فعلونو، نومونو او صفتونو په پيل کې راتۀ، چې د مخکې او مخې ته معنی يې افاده کوله(۱) او وايي، چې دا فــرا پــه دري ژبه کې هم تاکيداً د افعــالو پــه ســر کــې راغلــی او د فعـل لــوری څرګندوي، لکه: فرا آمد، فرا افګند، فرارفتند.(۲) نظامي ويلي دي:

شحنۀ مست آمده در کوی من
زد لګدی چند فــــرا روی من

سعدي وايي:

روزی افتاد فتنه يی در شام
هر يک ګوشه يی فرا رفتند

بيهقي وايي:

۱- اولډ پرشن ۱۹۷.
۲- سبک شناسي، ۱، ۳۳۹.

زبان فرا این پادشاه بزرگ مسعود نکند (ص،۲۴۲). د دې ډېرلیک په بېلابېلو ځایونو کې د دې ادواتو له کارونې څخه څرګنده ده، چې د افغانستان په ژبو کې ډېره کارېده او په پښتو کې یې نښې د (ور، در، را) په بڼه د درېو کسانو (غایب، مخاطب او متکلم) لپاره پاتې دي.

یادونه: دغه FRE په پښتو کې د پرې په ډول له ځینو افعالو سره راځي، لکه: پرې - وتل، پرې - ولل، پرې ښودل، پرې - مینځل او نور.

ځکه چې کله د نورو ژبو (ف) په پښتو کې په (و) اوښتې ده، لکه د اوستا وفره اود پهلوي VAFR، د سنګلچي VARF او د منجي VARFA(۱) چې په پښتو کې واوره او په پارسي کې برف ده. په همدې قیاس د پښتو (ور) د لوري او جهت ادوات،د هماغه پخواني ER له ریښې دی، چې په کوشاني کې هم و، خو دلته د (نوکونزوک- ی- کرل رنګ- ی- فرې- ی- خوادیوګ) په جمله کې د نوکونزوک موقع، مقام او منصب ټاکي، چې د خوادیوګ (خدای) له لوري یې د کرل رنګ (کنارنګ) مقام درلود او معنی یې ده (از طرف او تاکیدي نسبت) لکه: حاکم، پاچا د سلطنت مرستیال او نور.

پټه دې پاتې نه وي، چې ماریک (فرې) یو خاص نوم ګڼلی او هیننګ هغه د امین، صادق او امپراتور په معنی راوړی دی، چې له اټکله لرې ده او د کلمو ریښې پخپله په ډېر لیک کې شته دي، خو د (خوادیوګ) کلمه د ماریک او هیننګ په نظر د واک څښتن او خاوند او د

۱- حواشي برهان ۲۵۹.

AUTOKRATOR معادل او د پارسي خد یو دی، چې په ترکي کې KHEDIV په فرانسوي کې KHEDIVE وه.

د خدای کلمه د اسلامي پېر تر لومړیو پوړې هم د پاچا، مالک او واکمن په معنی په پارسي ادب کې مستعمله وه. خداوند ګار هر لوی شخص ته ویل کېده. په شهنامه کې کابل خدای او زابل خدای او ګوزګان خداه، سامان خداه او بخارا خداه د اسلامي پېر په لومړیو کې د تاریخ په کتابونو کې په همدې معنی وو(۱) او د کابل شاهانو په جمله کې، چې د اوومې مېلادي پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې یې د عربو د سوبمنو لښکرو پر وړاندې په دې خاوره کې مقابله کوله، یو هم (خودو وه یه که) KIIUDUWAYAKA نوم لري، چې سکې یې په ختیځ افغانستان او پنجاب کې لاس ته راځي. د دې پاچاهانو پلازمېنه د عربو تر سوبې وروسته له کابل او ګردېز څخه ویهند(هنډ= هنې)د اټک څنډو ته لېږدول شوې وه.(۲)

خو د خدای کلمه تر اوسه په پښتو کې بېلابېلې لهجې لري. خدوی، خودوی، خلوی(خولای= خولا) او داسې نور ورته وایي. ښکاره ده، چې د افغانستان د دې کلمې پخوانی تلفظ هم د پښتو همدې لهجو ته نږدې و، ځکه په دې ډېرلیک کې په ۱۴۵ لمبر کې خوادی XOADE راغلی او د کابلشاه په سکه کې (خودو وه یه که) دی. د کلمې وروستی

۱- وګ: زین الاخبار ګردېزي ۱۳، ۱۴او المسالک والممالک ابن خردازبه ۴۱. طبری، ۷، ۸ جلد.

۲- دائرة المعارف اسلامي ماده افغانستان، ج. ۱.

(گ)د نمانځوني ( تلجيلي ) (گ) له جنس څخه دی، چې د هماغه پېر د مشرانو د نومونو په پای کې به راتۀ. (وگ، ۱۱ لمبر).

۵۰- KID (کد - که)

متصل بياني قيد د نوکو نزوک له حاله، چې وروستی دال يې د علت تر توري (I) وروسته په پارسي کې بې غږه دی، لکه: ۲۶، ۳۲، ۳۷،۴۳ لمبر کلمې او داسې نور.

ماريک دغه کلمه د ختني د KIIE يا KADE او د سغدي KDY ته ورته گڼي او هيننگ هغه د (۸) لمبر ID اوښتې گڼي، چې په هغه ځای کې هم زما په عقيده تر (I) وروسته (دال) بې غږه او ناتلفظ پاتې او (سی، چې) لوستل کېږي.

په سغدي کې KDH کذ کټ مټ همدغه بياني (که، کی) دی، چې د شمالي پهلوي د اسوريک ونې په منظومه کې (گذش) د (که آنرا= چې هغه/ هغې ته) په معنی راغلی دی۱ او هغه څه، چې نن ورځ د کابل په عامه محاوره کې (کتې) ويل کېږي. زما په گومان د همدې ريښې له پاتې شونو څخه دي، چې ځينې خلک هغه (کدې) هم وايي، لکه کتې او گپ زد (که باو سخن زد) يا خذش گپ زد.

دا کلمه کټ مټ، لکه ۶۸، ۹۰ لمبر پيد ده، چې په پارسي کې (به) او په پښتو کې (په) له هغې څخه راپاتې دي او د پای دال يې حذف شوی دی. خو په ۱۲۱ او ۱۲۳ لمبر پدين (بدين) کې (دال) تر اوسه هم

۱- سبک شناسي ۱، ۱۱۰.

پاتې دی او همدا رنگه د کد دال په بياني (که، کی) کې بې غږه، خو د کابل په اوسنی عامه محاوره کې خدشي او د شمالي پهلوي په گذش کې موجود او خوندي دی.

يادونه: KID او IKID په منجي کې د کرد او بکرد معنی ښندي.

۵۱- FREICTAR (فري استار)

په پهلوي کې PARASTAR د خدمتگار، خادم، فرمان وړونکی او مطيع په معنی و (۱) فخر گرگانی وايي:

ازين هـــــر ما هروئی را هـزاران
بگردانـد رنگـارين پرستاران(۲)

فردوسي وايي:

پرستار زاده نـيايد بكار
اگر چند باشد پدر شهريار(۳)

هيننگ د دې كلمې گډې ريښې د سغدي په FRYSTR او د پارتي په FRY(H)STWM كې د فدا كار په معنی ښيي؛ نو له دې املـه (فرې استار- آب- شا- ی- بگ الخ) د (ستر پاچا ته مخلص او سرښندونكی) په معنی ليكي. دلته د ډبرليك د نور برخو پر خلاف د AB كلمه د (آب) په ځای د (به) په معنی اخلي، خو معقوله نه ده، چې په

۱- حواشي برهان، ۳۸۳.
۲- ويس و رامين، ۲۴.
۳- چهار مقاله، ۸۱.

ځينو کې AB د (آب) په اوسنی معنی وي او يوازې په دې برخه کې د (به) په معنی استعمال شوې وي؛ نو له دې امله زه دا تعبير په ځای نه ګڼم او (فرې استار آب) يو امتزاجي ترکيب ګڼم، ځکه د پرسيتار کلمه په پهلوي کې د خدمتګار او د يوې دولتي مؤسسې د مشر په معنی موجوده وه. په پهلوي متونو کې داسې راغلي:

پرسيتار مرد بيراه مبويد ([1])

په غالب ګومان د (فرې استار آب) امتزاجي ترکيب بايد د يوه داسې دولتي مامور نوم وي، چې د کبنې، اوبڅارونکي او ويالو(لښتيو) جوړوونکي دندې يې پر غاړه وې، چې اوس په کليو کې هغه ته کبنی (ميراب) وايو. په تاريخ سيستان (۳۱۴ مخ) کې اميري آب، د هغه مهال له دولتي دندو څخه يوه دنده ياده شوې ده، چې غالباً هماغه پخوانی فرې استار آب به وي. د دې تعبير له مخې بايد ووايو، چې همدې نوکونزوک د (فرې استار آب _ فرستار آب) په نامه د اوبو رسولو مؤسسې د رياست دنده هم درلودلې ده.

۵۲- AB (آب)

شرح يې په ۱۵ لمبر کې تېره شوه او په ۲۰، ۳۸، ۴۱، ۹۴، ۹۷ کې هم پر لېسې راغلې ده.

۵۳- SHA (شا)

۱- متون پهلوي، ۸۲مخ.

همدغه د پارسي اوسنی شاه دی، چې شرح يې په ۱۰ لمبر کې تېره شوه او وروستی (I) لکه، ۳۲، ۳۴، ۴۷، ۵۵، ۱۰۳ او نورو غونډې د اضافت او اتصاف نښه ده، چې اوس په پارسي کې يو اضافي زير د هغې استازيتوب کوي، خو د SHA املا د ډېرليک په دويمه نسخه کې SHAH (شاه) ده.

۵۴- BAG (بګ)

د خدای او لوی په معنی (وګ: ۶ لمبر)

۵۵- POHR (پوهر)

لکه څنګه چې په ۲۹ لمبر کې شرح ورکړل شوه، دغه کلمه بايد بګ پوهر ولولو؛ نه د هيننګ په لوستنه، چې هغه يې (پوير) لوستې ده.

ماريک بګه پوير له بګ پوتهرا (پسر خدا = د خدای زوی) څخه د سنسکرېت د يوه پوترا ته نژدې ترکيب ګڼي، چې پوير (سم يې پوهر) به د کورنيو نومونو د روستاړي په ډول وي.

د دې کلمې اصل په پخوانی پارسي کې PUCA په سنسکرېت کې PUTRA په اوستا کې PUTHRA په پهلوي کې PUHR کې او په پښتو او پارسي کې پور = پوس= پسر(۱) په زړه هندي کې PUSRA او په سندهي کې پوتره دی. په دې ډېرليک کې يې کوشاني املايې د پهلوي پوهر ته ورته وه؛ نو بګ پوهر د خدای زي، شازي او د خدای زوی معنی ورکوله، چې د وروستي (لويک بوسر) صفت او نسبت دی او

۱- اولډ پرشن ۱۹۷.

همدا کوشاني ترکيب بگ پوهر په پارسي کې بغپور او معرب يې فغفور (پسر خدا = د خدای زوی) و.(۱) خوارزمي دې مطلب ته په زغرده نغوته کوي(۲) او همدغه پخوانی پوهر، د پارسي پور په پښتو کې د تربور په کلمه کې (ترهٔ = کاکا + بور × = زوی)، يعنې د کاکا زوی او د بورې(زوی مړی) په کلمه کې موجوده ده. پته دې پاتې نه شي د دې ډېرليک په دريمه نسخه کې د POOR په املا ليکل شوې، چې همدغه پارسي پور او د پښتو بور دی. سي، ايل هوارت په اسلامي دايرة المعارف (۲، ۳۸ مخ) کې ليکي، چې ابن اثير (۷، ۲۲۱) فغفور د آسمان زوی په معنی گڼلی دی، چې کټ مټ همدغه لقب په چيني ژبه کې TIEN TSO و، يعنې SON OF HEAVEN آسمان زوی. د عربي په زيتون کتيبه کې، چې په ۷۲۳ هـ. ش. کې ليکل شوې او مارکوپولو د يول ژباړې په دويم ټوک ۱۴۵ مخ کې د هغه يادونه کوې، دغه لقب د چيني امپراتور SUNG لپاره استعمال شوی دی.

له دې ښکاري، چې دغه لقب په منځنی اسيا کې تر چين پورې غځېدلی و.

۵۶- LOIX (لويخ)

ختيځپوهان د دې کلمې اصليت ته نه دي ځير شوي، چې د اسلامي دورې په مآخذ کې لويک دی او دې کورنی د کابل، غزني او

۱- حواشی برهان، ۱۴۸۴.

۲- مفاتح العلوم، ۷۳.

گردېز د سيمه ييزو پاچاهانو له ډلې ځخه د اسلامي پېر په لومړيو کې په دې سيمه کې واکمني درلوده. لويک، چې په يوناني ليکدود کې لويخ شوی کورنی نوم دی(۱) چې د لويک کورنی د دغه بغپور او خدايزي اصلي نوم په (۵۷) لمبر کې بوسر BOCAR دی. دا لويک ښايي د کوشاني شهنشاه له لورې، د دې سيمې واکمن و، چې نو نزوک کنارنگ د اوبو د کښې په توگه د دې لويک له خوا ټاکل شوی و.

د لويک کلمې او په اسلامي پېر کې د هغوی د کورنی شرح مې په پښتو و لويکان غزنه رساله کې په تفصيل سره ورکړې ده، چې دلته د مطلب کُل ته نغوته کېږي.

لنگورت ډيمز وايي، چې د ۲۶۰ هـ په شاوخوا کې د غزني سيمه ييز واکمن شاه لاويک و، چې مجهول شخصيت دی.(۲) عبدالحی گردېزي له ابو منصور افلح بن محمد بن خاقان سره په گردېز کې د يعقوب ليث مقابله شرح کوي.(۳) همدارنگه نظام الملک د الپتگين د وخت په شرح د غزني امير د لويک په نامه يادوي(۴) او منهاج سراج

۱- د دې کلمې املاء په درېواړو نسخو کې توپير لري، په لومړی او اصلي نسخه کې LOIX په دويمه نسخه کې LOX او په دريمه نسخه کې ALIIX ده او هغه ښه، چې په اسلامي پېر کې د لويک، لاويک، انوک، لاويل او نور په ډول ډول املاء ثبت دي، په هماغه پخواني دور کې په يوناني املاء کې همدا سرنوشت درلود، چې د يوې کتيبې په دريو نسخو کې په يوه ځای او ښايي په يوه وخت کې (؟) په درې ډوله املاء ليکلی ده او دغه برخه د تعجب وړ ده.

۲- دايرة المعارف اسلامي، ۲، ۱۵۴.

۳- زين الاخبار ۶.

۴- سياست نامه ۱۲۲.

جوزجانی هم د لوګر په څرخ کې د ابوبکر لاویک او سبکتګین د مقابلې یادونه کوي.(۱) محمد بن علي شبانکاره یي هم د غزني د دې واکمن یادونه کړې ده.(۲) ګردېزي هم د ګردېز د دې واکمنو د کورنی پاتېشوني د غزني په دربار کې د سفارتي منصبونو او سیاسي دندو څښتنان ګڼلي دي او د سخي سرور د کرامات په خطي نسخه کې، چې د پښتونستان په ډېرۀ اسماعیل خان کې موندل شوې وه، د غزني د دې واکمنې کورنی یوه کیسه پکې راغلې وه، چې د غزني د واکمنانو د کورنی پاتې شوني د اسلامي سوبو په لومړیو کې دلته وو او په خلجیه (پښتو) ژبه له دوی څخه یو بیت روایت شوی دی او د ټولو شته اسنادو له مخې د دې کورنۍ دا واکمنان او کسان پېژنو:

۱- لویک وجویر (د غزني هجویر، اجرستان) هغه ته منسوب دی د رتبیل او کابلشاه هم پېر د ۱۲۰ هـ شاوخوا.

۲- لویک خانان (خاقان) د وجویر زوی، د خنچل کابلشاه هم پېر د ۱۶۳ هـ شاوخوا.

۳- محمد بن خاقان د ۲۱۰ هـ شاوخوا (مسلمان شوی).

۴- ابو منصور افلح د محمد زوی، چې په ګردېز کې د یعقوب لیث صفاري له خوا یې د ۲۵۶ هـ شاوخوا ماته و خوړه.

۵- منصور بن افلح د ۳۰۰هـ شاوخوا.

---

۱- طبقات ناصري ۱، ۲۶۸.

۲- مجمع الانساب خطي.

۶- مرسل(۱) بن منصور د ۳۵۰ هـ شاوخوا.

۷- سهل بن مرسل د ۴۰۰ هـ شاوخوا.

۸- ابو علي یا ابوبکر لاویک د کابلشاه خسر، چې د لوګر په څرخ کې له خپل زوم (د کابلشاه زوی) سره د سبکتګین له لاسه ماتې وخوړه (۳۶۰ هـ)(۲)

که چېرې د لویک له دې اتو کسو سره د دویمې مسیحي پېړی دوه کسه پخواني لویکان، چې په دې ډېرلیک کې د شاه فغفور لویخ بوسر په نامه یاد شوي او همدا رنګه یې د پلار نوم شیزو ګرګ (ارواښاد، شادروان) هم ور اضافه کړو؛ نو موږ د غزني او ګردېز د دې پاچاهانو کورنی څخه لس کسه پېژندلي دي؛ خو د لویک د کورني نوم او د هغو ادبي اسنادو په اړه مې د ((پښتو ولویکان غزنه)) په رساله کې شرح ورکړې ده، چې نچوړ یې داسې دی:

د لویک کلمه د پښتو له لوی (بزرګ = سردار) څخه د درنښت یا تجلیل د (ک) په یو ځای کېدو سره جوړه شوې ده، چې په ۱۱ لمبر کې شرح ورکړ شوې ده او بېلګې یې په همدې ډېرلیک او پهلوي کې ډېرې دي.

---

۱- د افغانستان د ختیځ ولایت ننګرهار په خوګیانیو کې د (مرسل بابا) په نامه مزار شته، خو څرګنده نه ده، چې کوم مرسل؟ خو د غزني د زړو بندونو له ډلې څخه ۱۵ میله د جنوب ختیځ لوري ته د (مرسل بند) تر اوسه هم په همدې نامه شته او قوي احتمال شته چې همدغه دی لویک مرسل ته منسوب وي.

۲- د دې بحث د تاریخي اسنادو د شرحې لپاره وګ: پښتو و لویکان غزنه، د عبدالحی حبیبي تالیف، کابل چاپ ۱۳۴۱هـ.

خو دا چې څنګه دلته د تجليل(ک) په (خ) اوښتې او LOIX يې ليکلی دی، ښايي لامل به يې د ژبې په ګرامر پورې اړه ولري، چې تر(I) وروسته د (ک) غږ په (خ) بدلېده.

۵۷- BOCAR (بوسر)

د شاه لويک (خاص نوم) دی، چې هيننګ هغه د پخوانی پارسي له اوپت چاره UPAT-CHARA سره نښلوي، خو د لويخ او بوسر د کلمې په اړه نور څه نه وايي او په دې اړه د پارسي (بزار، افزار) د کلمو هم يادونه کوي، چې دومره موزون او اړوند نه برېښي؛ خو څنګه چې لويک کورنی نوم او بوسر پخپله د پاچا نوم دی، نو کومه ستونزه مو په مخ کې نشته.

۵۸- SHIZOGARG (شيزوګرګ)

دغه کلمه ماريک او هيننګ شيزو ګرګو لوستې او د هغه معنی يې TLIE BENFICIENT يعنې نيکو کار او کريم ليکلې ده، خو د داسې تعبير سند يې نه دی ورکړی او د هغه ريښه يې نه ده په ګوته کړې.

څرنګه، چې د لويک بوسر د خاص او د دې کلمې ترمنځ د اضافت نښه (I) ابوت موجوده ده؛ نو د پهلوي او دري پر بنسټ، چې د پلار و زوی د نومونو ترمنځ د اضافت نښه د بنوت (زويولی) مقصد ورکوي، د شيزو ګرګ کلمه د لويک بوسر د پلار نوم ګڼم، د دې اضافت او د زويولی زېر بېلګې د ناصر خسرو په دې دوه بيتونو کې شته:

سام نريمان کو و رستم کجاست
ئِيشر و لشکر مازندران

بابک ساسان کو و کو ارد شير
کو ست نه بهرام و نه نوشيروان (۱)

او همدارنګه د اضافت او اتصاف (I) د شيزو ګرګ تر کلمې وروسته هم راغلی، چې وروستی ۵۹ کلمه د هغه صفت او اضافت دی، خو دا نښه په لومړۍ او دويمه نسخه کې د (O) منفصله نښه او په درېيمه نسخه کې له شيزوګرګي سره نښتې ده او قاعدتاً بايد جلا (منفصل) وای.

۵۹- ALOSHXAL (الوښال- ارواښاد)

هيننګ دغه کلمه د رحيم او مهربان په معنی راوړې او د کلمې دويم جزء يې له پارتي نامهٔ XCHD سره تطبيقول غوښتي دي. لکه څنګه چې مو مخکې وويل دا کلمه د توصيفي اضافت په نښې (I) سره له شيزوګرګ سره تړلې ده او دعايي صفت دی.

د کلمې لومړی جزء (ال او _ الو _ اروا) دی، چې د پښتو او پارسي ترمنځ (ل) تل په (ر) اوړي، لکه: ديوار، دېوال، غربيل، غلبېل؛ نو د کوشاني ژبې ALO (الو)په اوسنی پښتو او پارسي کې (اروا) شوی، چې د هغه معنی به (ځان) وي.

۱- د ناصر خسرو دېوان، ۳۱۷.

دا کلمه د اروند - الوند په لومړي جزء کې هم د (الو - ارو) په بڼه خوندي ده، چې اصل يې په اوستا کې د ځاندار، تېز، چالاک، ځـواکمن او زړور په معنی AURVANT وه، چې د ځان له صفاتو څخه دی.

لکه څنګه، چې تصور کېږي دا کلمه د عربي د (ارواح) جمعې لـه کلمې څخه نه ده راوتلې او د افغانستان په پښتو او پارسي کې لـه پخـوا څخه پاتې ده؛ نوډېر امکان لري، چې د ځان په معنی دپارسي او پهلـوي (روان) او د اوستا اروان URVAN د همـدې کوشـاني الـو ـ د پښـتو او پارسي اروا سره هم ريښه وي، ځکـه د اوسـتا (اروان) د اروا لـه اوسـنی تلفظ سره بشپړ نږدېوالی لري. د اروا د ريښې د پخواني استعمال بېلګـې په اوستا کې د ګشـورون GOSURVAN کلمـه ده، چـې د وهومنـه لـه مرستيالانو څخه (د څارويو ساتندويه پرښته) وه.

يادونه: د بدخشان په پارسي کې Alawد اور په معنی دی.

دغه کلمه يې په ګشو (ګاو) + رون (روان) ژباړلې ده (روان ګـاو)، چې په ايراني فقه اللغة د جيکسن تاليف (۲، ۶۳۷) د لوی بندهش حوالـه ورکړې شوې ده(۱) او په دې نامهٔ کې کولای شـو لـومړي جـزء تـه لـه (غژګاو = د پامير او بدخشان د غرونو سپېڅلی غرنی غويي) او دويم جزء ته يې له (الو ـ اروا ـ روان) سره د ځان په معنی سمون ورکړو.

۱- مزدا پرستي در ايران قديم، ۴۶.

خو د ښال د کلمې دويم جزء همدغه د پښتو ښاد او د پارسي شاد دی، چې د (ښ) مخرج د ښکاره کولو لپاره په يوناني کې PX (ښ خ) يو ځای استعمال کړې(۱) او د (ښ) ځـانګړی تـوری يـې چـې د ش او خ ترمنځ ګډ غږ دی د دواړو تورو په ليکلو سره افاده کړی دی. څرګنده ده چې دغه غږ يې کټ مټ لکه د کابل د لوېديځ لوري د پښتو د اوسمهالي (ښ) په څېر ادا کاوهٔ (۲) خو د کلمې وروستی توری لام په نورو ژبو کې پر دال اوښتی، چې د دې بدلون بله بېلګه په همدې ډبرليک کې په نوشاد د نوشال اوښتل دي؛ نو له دې ښکاري چې په کوشـاني ژبـه کـې يـې د نوشاد او شاد کلمو همدا وروستی دال په لام تلفظ او ليکه. د شاد کلمـه په پهلوي کې SHAT په اوستا کې SHATA پـه پخـواني پارسـي کـې SHIYATI وه؛ نو ښال، شاد، شات او ښاد د کلمې بېلابېل تلفظونـه دي او جمعاً دواړه کلمې (اروا + ښاد) يعنې شاد روان او ارواښـاد دي، چـې ښايي اصطلاح وي، لکه اوسنی (ارواښاد) چـې احترامـاً د مـړو لپـاره د دعايې په ډول راځي. څرنګه، چې شيزو ګرګ د شاه لويک بوسر پـلار د ډبرليک ليکلو په وخت کې مړ، نو هغه ته يې ارواښاد وايه. له دې بحـث څخه دوې روښانه پايلې اخيستل کېږي:

۱- دويمه نسخه کې دا کلمه A...AXSHAL (ا... اخشال؟) معلومېږي او د (ښ) املاء په هغه کې XSH ده.

۲- د اوستا او دين دبيري په الفبا کې پر عادي شين سربېره يو مشدد شين موجود و، چې د پښتو د (ښ) غـږ يـې ورکاوه او په اوستا کې د شاته SHATA کلمه = (شاد) په همدې معنی او د پښتو د (ښاد) غږ او د کوشاني (ښال) و.

لـومړی د هغــې زمــانې د خلکــو عقیــده د روح پــه وجــود او تلوالي(خلود) څکه څرګنده ده، چې تر جسماني فنا وروسته د روح په وجود معتقد وو، نو د هغه خوښي يې غوښتله.

۲- ښکاره ده، چې د پښتو د (ښ) غږ په کوشاني ژبه کې هـم و او شاد يې ښال تلفظاوه او د هغه لپاره يې (ش او خ) يو ځای ليکل.

۶۰- KID (کد - که)

د موصول قيد بياني ادوات دي او د اروابناد شيزو ګرګ د احوالـو بيان دی. وګ، ۵۰.

۶۱، ۶۲- FARO-OICP (فرووِيسپ)

د دې کلمې لومړی برخه غالباً د پخوانی پارسي د پـرو د اوسـتا د پورو او د پښتو له پوره ريښې سره، چې د بشپړ اوتمام معنی لري، اړونـد ده، شرح به يې په ۹۶ لمبر کې راشي، خو دويـم جـزء OICP (ويســپ) ماريک د پخوانی ايراني ويسپه WISPA د (ټول، ګـرد، همــه) پــه معنــی لوستی دی، چې په پهلوي کې هم وسف (همه) هروسف (هر همه) و او د حمزه بن حسن په " التنبيه علی حروف التصـحيف" کـې چـې يـوازينی خطي نسخه يې د تهران د حقوقو پوهنځي په کتابتون کې ده، د پخـواني ليک له ډولونو څخه اووم ډول وسـف دفيـره دی، يعنــې د ټولوليـک او ترټولوجامع ليک(۱) چې له دې سند سره د ماريک تعبير معقول ښکاري.

۱- سبک شناسي ۱، ۹۹.

دوې کلمې ۶۱، ۶۲ بايد فرو ويسپ، پوره، بشپړ ولولـو، چـې لـه خپـل ملۀ(مابعد) سره اړيکه لري.

۶۳، ۶۴، ۶۵- ANOMO-OAD-BARGAN (انو مو واد برګان)

هيننګ دغه کلمې له کد څخه تر برګان پـورې يـوه دعايـه جملـه ګڼي او وايي ښايي، چې د پاچا دعايه وي(۱) خو ده او نورو د دې دعايې د کلمو تحليل نه دی کړی او ظاهراً ۶۳ کلمه د پارسي نام = پښتو نوم ښه ده او ۶۴ کلمه يې (واد) لوستی، چې د (بودن) له مصدر څخـه د همـدې دعايې د (باد) پخوانی بڼه ده، خو ۶۵ برګــان کلمــه د ډبرليـک د دويمــې کرښې له ۱۱ لمبر نام برګ سره اړيکه لري، خو د دغو کلمو د جزئياتو په اړه اوس څه نه شو ويلای ، چې ولې ۱۱ لمبر نوم دلته انومو شو او ولې د دعايې (واد ـ باد) په منځ کې راغی او ولې هماغه ۱۱ لمبـر بـرګ دلتـه د AN په ورنښتو برګان شو. قوي اټکـل دی، چـې د ګرامـري حالـت پـه غوښتنه د دغو کلمو بڼې څه اوښتې وي، ژوره څېړنه يې په کوشاني ژبـه کې د کلماتو د ګرامري حالت د بدلون په اړه زموږ راتلوونکو معلومـاتو ته اړتيا لري.

په هر صورت: له ۴۶ څخه تر ۶۵ پورې کلمـې د تېـر تحليـل لـه مخې داسې معنی ښندي:

۱- د دې دعايه جملې بېلګه د فردوسي دغه بيت دی:

بگاه شهنشاه نوشیروان

که ناش بماند تاجا ودان

تاکلد نوکو نزوک ی کرل رنگ ی فرې ی خوا دیوگ، کـدفرې
استارآب

تر هغه وخته چې نوکونزوک ی کنارنگ د خدای له لوري، چې
د اوبو کښی

شای بگ پوهری لویخ بوسری شیزوگرگ ی الوښال
اروانباد شاه ی فغفوری لویک بوسر (بن) شیزو گرگ ی.
کد فرویسپ انومو واد برگان!
چې (ټول) دې تل نومالي وي!

د برگ د روستاړي په اړه ۱۱۹ کلمه وگورئ، په ۱۱ لمبر کې مې هم شرح ورکړې ده.

۶۶- WCOGD(وسوگد)

د دې کلمې ژباړه ماریک (سپېڅلې او نـړه) لیکلـې ده او د زړې اریاني( ایراني) AWA-SUSETA له ریښې څخه یې گڼلې ده او ورپسې کلمه منگ یې د (کتان) په معنی لیکلې ده. هیننگ منگ پـه کتـان معنـی کولوته په انکـار ډولـه تعجـب کتلـي دي او د دواړو کلمـو معنـی (پـه سپېڅلي زړه سره) لیکي. رښتیا په دې ځای کې دکتان کلمـه د کـلام لـه لوري سره سمون نه خوري.

په دري ژبه کې د جوړ شوي، چمتو او برابـر پـه معنـی د اسـغده ASAGHDA په بڼه یوه کلمه وه، چې د جوړولو، ادا کولو او چمتو کولو په معنی یې د اسغدیان په بڼـه مصـدر هـم درلـود.(۱) د دري دا کلمـه د وسوگد له کلمې سره ډېر نږدېوالی لري او ښایي تر منگ وروسته کلمـې سره هم اړیکه او معنوي سمون ولري.

۶۷- MANG (منگ)

د غبرگ G د تلفظ پر اساس، چې پـه ۷، ۴۸، ۷۷، ۹۱، ۱۴۳ کلمـو کې د (انگ) غږ لري؛ نو دا کلمه هم باید منگ ولولو، چې مخکې مـو پـه ۱۱ کلمه کې ولوستل، چې په دې ډېرلیک کې ځینې کلمې دي، چې پـه یوه اتصافي (گ) پای ته رسېدلي چې د دغه گ تلفـظ د گ اوک تـرمنځ و(۲) نو که دغه اتصافي (گ) له دې کلمې څخه لرې کړو،نو (مـن) پـاتې کېږي، چې د پښتو په زاړه ادب کې د ارادې په معنی و. امیر کرور جهان پهلوان (۱۳۹ هـ شاوخوا) وایي:

غشی د من مې ځي برېښنا پر مېر څمنو باندې(۳)
زما د ارادې غشی پر دښمنانو باندې لکه برېښنا ورغورځي.

دغه کلمه په سنسکرېت کې هم د زړه او روح د ارادې پـه معنـی وه.(۴)

البیروني د زړه او ارادې په معنی راوړې ده(۱)پـر دې سـربېره پـه پښتو کې متل هم په زړه کې د څه قبلول دي؛ نو ویلای شو چې وسـوگد

۱- برهان، ۱۲۹.
۲- سبک شناسي ۱،۲ ، ۳۰.
۳- پټه خزانه، ۳۳.
۴- قاموس هندی، ۷۰۳.

منګ (اسغده منګ) په زړه برابر او چمتو (قوي) معنی لري. دغه دوې کلمې د هماغه نوکونزوک کنارنګ د حال وصفي ترکیب دی، چې د زړه له تله او په کلکه اراده یې په کار پیل کړی و.

۶۸- PID (پد - په - به)

دغه کلمه (پښتو په _ پارسي به) په ۹۰، ۱۲۱، ۱۴۴ لمبر کې هم راغلې او کټ مټ، لکه ۵۰، ۶۰ لمبر کډ او ۸۳، ۱۱۶، ۱۲۲، ۱۳۲ لمبر ساد او ۴۶ کلد او نورې دال پای بېلګې (اخوات) چې په دې ډبرلیک کې پرلپسې راغلي دي، وروستی دال یې په (ه) اوښتی دی او اوس په پښتو کې (په) او په پارسي کې (به) پاتې ده.

همدغه د کوشاني پد په پهلوي کې پذ _ پت کټ مټ د (به _ په) په معنی و(۲) همدارنګه هیننګ دغه کلمه د (به _ بر) په معنی ثبت کړې، چې په پخوانی پارسي کې PATI، په اوستا کې PAITI او په تورفان پهلوي کې د کوشاني همدې پد ته PADH نږدې وه(۳) دا کلمه په ۹۰، ۱۴۴ لمبر کې هم راغلې او په ۱۲۱، ۱۲۳ لمبر کې د پدین په بڼه پاتې شوې ده. دا کوشاني پد په دري ژبه کې د اسلامي پېرتر لومړیو ژوندی وه. دکرکوی د اورتون په سندره کې، چې د ابوالمؤید بلخي له شهنامې څخه د تاریخ سیستان په (۳۵ مخ) کې نقل شوې ده، دا بیت راغلی دی:

۱- کتاب الهند ۱، ۴۵.

۲- سبک شناسي ۱، ۱۲۴.

۳- حواشي برهان، ۳۲۲.

دوست بذا گوش
بآفرین نهاده گوش(۱)

چې په لومړي نیم بیتي کې بذاګوش (په غېږ کې) معنی ښندي او همدا کوشاني (پد) = پهلوي (پت) د محمد بن احمد بشاري مقدسي ۳۷۵هـ. پر پېر د خراسان په مروه کې اوربدل کېده. په دې معنی چې همدغه مؤلف او ځیرمن سیلاني د خراسان په مروه کې د برای له(به+ رای)څخه مرکبه د پترای (پت + رای) په معنی په همدې ډول(من اجل هذا) اورېدلې وه(۲) چې (پت= پد) یې تر دې وخته هم په دې کلمه کې وایه.

۶۹- I-IWG (ی - ایوګ)

له ایوګ څخه مخکې آی هماغه د نسبت او اضافت له ربطي ادواتو څخه دی، چې په دې ډبرلیک کې پرلپسې راغلي دي. ایوګ همدغه د پارسي (یکم) او د پښتو لومړی دی، چې په پهلوي کې هم د (ایوک) په بڼه د کاف په شد موجود و(۳) او په ۸۲، ۱۳۰، ۱۴۸، ۱۶۴ لمبر

۱- تاریخ ادبیات از دکتور صفا ۱، ۱۴۷.

۲- احسن التقاسیم ۳۳۴.

۳- سبک شناسي ۱، ۴۱۸.

کلمو کې دغه د عدد نوم په مجرده بڼه ښکاره دی، چې د پښتو (یو) ته نږدې و.

په پخوانۍ پارسي کې د یو عدد IVAKA یا AIVA په اوستا کې AEVA په پازند کې YAK په زړه هندي کې EKA په کُردي کې IKI په استي کې YEV په بلوچي کې EYAK په واخي کې IV په شغني کې YIV په سریکولي کې IV په یغنوبي کې I په منجي کې YAO او په سنګلیچي کې VAK دی(۱) د EII د کلمې له مجردې بڼې، چې په دې ډېرلیک کې پرلپسې شته اتکل کوو، چې د یکم(لومړی) په معنی مجرد عدد EII او مرتب عدد ایوک و.

۷۰- ODOHIRC (اودو هیرس)

د پښتو (دېرش) ته نږدې عددي نوم دی، چې د غزني د غلجیانو په تلفظ کې (دېرس) دی او په پارسي کې به د (سی) عدد دی؛ نو مخکینی کلمه (ایوګ اود وهیرس) د (یو دېرش) یعنې د پارسي له سی و یکم سره معادل ده (په درېیمه نسخه کې د دې کلمې څو توري نه لیدل کېږي).

دیویزو(آحاد) او لسیزو(عشرات) د اعدادو له دې ترتیب څخه څرګنده ده، چې په کوشاني ژبه کې کټ مټ د پښتو په څېر لومړی یویزونه اوبیا لسیزونه راتلل. د (سی) کلمه په پخوانۍ پارسي کې

۱- حواشی برهان، ۲۴۴۰.

TII(R)ITHAT په اوستا کې THRISAT په سنسکرېټ کې TRICAT په پازند کې SI په پهلوي کې SIH وه.(۱)

هیننګ وایي، چې په ختني ژبه کې هم آحاد مخکې له عشرات څخه دمخه راتلل او همدغه ۳۱ په هغه ژبه کې OSSETE دی.

۷۱- XSHON (خشون _ شاهي)

هیننګ او ماریک دغه کلمه د (سلطنت کال) RECNAL-YEAR په معنی ګڼلې او وایي، چې په ختني کې KCHUNA وه. کریستن سن د خشون ریښه د افغانستان هفتالي پادشاه اخشنور _ خشون (۴۶۰ م) په نامه کې د پاچا په معنی ګڼي او کټ مټ دا خشون یې په همدې معنی د سغدي متونو په حواله میولر (۱، ۱۰۸) په سغدي ژبه کې ښودلې ده(۲) په لرغوني پارسي کې د هخامنشیانو په ډېرلیکونو کې پرلپسې د دې کلمې مشتقات راغلي، چې اصل یې په لرغونې پارسي کې XSAY په اوستا کې XSA او په سنسکرېټ کې KSAYATI وه. خشایه تهیه XSAYATHIYA کلمه د پاچا په معنی له همدې ریښې څخه ده(۳) او څېړونکي وایي، چې طبیعت د (خش) په توري وقهرېد، هغه ته یې د قهر په سترګه وکتل او څو سوه کاله وروسته یې په اسانه بڼه (شه _ شاه) ته راواړاوه(۴) چې په پهلوي کې SIIAII او د ایران په څینو شمال لوېدیزو

۱- حواشی برهان، ۱۱۹۸.

۲- ساسانیان، ۳۸۵.

۳- اولډ پرشن، ۱۸۱.

۴- سبک شناسي ۱، ۱۸۱.

ژبو کې SHATHR و، چې د پښتو د (ښار) او د پارسي د (شهر)کلمو ریښه له همدې ځایه ده.(۱)

د دې کلمې د پاتې شونیو په اړه مې د پښتو ژبې او ادب د لویکان غزنه ۲۵ مخ او د پښتو ادب تاریخ په لومړي ټوک کې مې شرح ورکړې، هغه وګورئ، خو دلته تر یودېرشم کال وروسته د دې کلمې له راوړلو څخه موخه دا ده، چې د کنیشکا د پېر په یو دېر شم کال د (۱۶۰م شاوخوا) باید دغه ډېرلیک لیکل شوی وي.د دې رسالې د پایلې برخه وګورئ.

۷۲- NEICAN (نیسان)

له بابلي میاشتو څخه د یوې نوم دی. د بن ونیست د وینا له مخې په سغدي کلیز کې هم معمول وه. نیسان د رومي کال اوومه میاشت او د بابلي پسرلنۍ میاشت ده، چې دعېسوي اپریل او مارچ(وري)سره معادله ده. په سریاني کلیز کې هم اوومه میاشت ده. د یهودو په مذهبي کال کې لومړۍ میاشت او دېرش ورځې وه(۲) د دې کلمې تحول:

اکادي: نیسن > آرامي: نیسن > عربي: نیسان(۳) د دې نامه له کارولو څخه پوهېږو، چې په کوشاني پېر کې بابلي کلیز په دې خاوره کې دود و.

۱- حواشی برهان ۱۲۳۱، ۱۳۱۵.

۲- دایرة المعارف اسلامي مادهٔ نیسان.

۳- الدخیل فی لغة العرب، مجله کلیة الاداب قاهره، ۴۹ مخ لومړی ټوک، ۱۹۵۰.

۷۳- MA (ما = ماه)

په کوشاني ژبه کې یې اوسنی (ماه= میاشت) له وروستی (هـ) پرته لیکله، لکه (شا - شاه) او (نیسان ماه) یې بلله، چې په پهلوي کې یې(ماه - ماهک) په اوستا کې او پخوانی پارسي کې یې MAWNGH په سنسکریت کې MAS او په سغدي کې ماخ وه(۱) په دویمه نسخه کې دا کلمه ماه MAH ده.

۷۴- MAL (مال)

د مودې او وخت په معنی، چې اوس هم په پښتو کې مال او مهال د زمان او وخت په معنی ژوندی دی.

په پخوانیو پښتو ادبیاتو کې د اسلامي پېر له لومړیو څخه دود وه، چې د پټې خزانې په تعلیقاتو او حاشیو کې مې شرح ورکړې ده.

۷۵_ AGADOAN (اګادوان)

د دې کلمې وروستی جزء ماریک AM لوستی، خو څرنګه چې مې په کابل موزیم اصل ډېرلیک وکوت، هلته د M پر ځای په څرګند ډول N لیکل شوی؛ نو له دې امله یې هغه N لولم.

په دویمه نسخه کې نه معلومېږي، خو په درېیمه نسخه کې یې هغه AB لوستې ده. څرنګه چې له ۶۸ - ۷۴ کلمې پورې د بګ لنګ کلا( مهادژ) د جوړېدو نېټه ویل شوې ده: د کنیشکا د پېر په یو دېرشم کال د نیسان ( ثور میاشت) نو ۷۵ مه کلمه له ځانه د وروستی اړونده ده.

۱- حواشی برهان ۱۹۵۶.

ماریک اګاد له GATA څخه د رسېدلي او تېر شوي په معنی اخیستی دی، یعني د ثور یا نیسان میاشت نیمه تېره شوې ده؛ خو زما په نظر د کلا جوړېدو نېټه د (مال) یعنې وخت په کلمه پای ته رسېدلې ده؛ نو باید اګادوان له ځانه د وروستي اړوندوي.

په لرغوني پارسي کې GATHU په اوستا کې GATU د (ځای، مکان، تخت) په زړه هندي کې GATU (لاره، چلند) و، چې ختیځپوهانو د هغوی بېلګه د پښتو غالی GHALAI ګڼلې ده.(۱)

زما اټکل دا دی، چې کوشاني اګاد هماغه پخوانی ګاتهو _ ګاتو دی، چې په پارسي کې (ګاه) د مکاني ظرف په معنی دی(۲) او په پای کې یو AN روستاړی د هغه په پای کې ورسره نښتی دی، چې همدا د اتصاف، نسبت او حالت روستاړی موږ د همدې ډېرلیک په ۶۵، ۹۳، ۹۸، ۱۰۱، ۱۰۷ لمبر کلمو کې وینو. اوس په پښتو کې همدا د اتصاف، نسبت او حالت AN موجود دی، چې د کلمو له پای نښلي، لکه کال، کلن، (کال ته منسوب) توره، تورن (شمشیري)؛ نو که د بګ لنګ اګادوان دغسې وژباړو، لرې نه به نه وي: (په بګ لنګ کې یې ځای ونیو = بګ لنګ یې پلازمېنه کړه = په بغلان کې استوګن شو.)

۷۶- BAG-LANG :۷۷ (بګ لنګ= بغلان) وګ: ۶، ۷.

۱- حواشی برهان ۱۷۷۱.

۲- د ۲۶ لمبر او د ۳۲ لمبر تاد د اداتو وروستی دال حذف شوی او په (کلد، پد او کد) کې په خفیفه (هـ) اوښتی؛ نو ممکنه ده د کوشاني اګادهم د پارسي (ګاه) شوی وي. (وګ: ۳۲، ۸۳).

۷۸- TADEI (د تادئی)، (تاکه) وګ: ۱۸ _ ۸۱.

۷۹- MALIZ (مالیز، مهادژ) وګ: ۲.

۸۰- POROGAT (پوروګت)(۱)

هیننګ دا کلمه د ۱۲۸ لمبر (پورواټ) سره له یوې ریښې اوله FARWA(R)CHT څخه د پالنې او ځارنې په معنی مشتقه ګڼي، چې د کلمې وروستی (CHT, (T استازیتوب کوي.

له دې ریښې د کوشاني او سغدي بڼې ته نږدې په پښتو کې(پرورښت) موجود دی، چې په پارسي کې پروردن= پرورش له دې ریښې څخه دی. په لرغوني پارسي کې هم FRO+VAT د ساتنې، ځارنې اوپالنې په معنی و او له دې ریښې څخه د هخامنشیانو په ډېرلیکونو کې نومونه موجود دي(۲)

ښایي پوروګت مطلق ماضي معروف فعل وي، چې په اوسنۍ پارسي کې (پرورد) ورته وایو.

نو ددې جملې مقصد دا دی چې هماغه نوکونزوک کنارنګ د اوبو فرستار د کنشکا د پېر په ۳۱کال په وري میاشت کې بغلان ته راغی او دا کلا ( مهادژ) یې جوړه او سمباله کړه:

اګادوان بګ لنګ تادئی مالیز پوروګت:

په بغلان کې ځای پر ځای شو ونیوۀ، چې دا کلا یې جوړه کړه.

۱- په دریمه نسخه کې واضح نه دی PORGA لیدل کېږي.

۲-

۸۱- TADEĪ(تادئی)= (تاکه) وګ: ۱۸، ۷۸.

۸۲- EII (اي= پښتو یو= یک)

وګ: ۶۹، ۱۳۰، ۱۴۸، ۱۶۴( په دویمه نسخه کې E او په دریمه نسخه کې EI) دی.

۸۳- CAD(ساد)

ساد= پښتو څاه= پارسي چاه دی؛ خو دغه کلمه ماریک د ټول، بشپړ او ساده او د ارمني (ستک) (پوره= بشپړ) په معنی د سغدي (ست) ته نږدې ګڼله، چې ناسمه ده او له موقع سره سمون نه خوري.

د هننګ رایه ښځي سمه ده، چې په سغدي کې (چت) د څاه په معنی و.

د څاه په معنی کوشاني ساد او اوستا(سات) له همدې کلمې سره نږدېوالی لري. لکه څنګه چې په ۱، ۸، ۲۲، ۲۶، ۳۲، ۴۷، ۶۰، ۶۸، ۹۰ او نورو کې وینو د کلمې وروستی Dچې د علت تر تورو وروسته راغلی یا په سپکه( هـ)بدل شوی او یا بې غږه پاتې شوی دی؛ نو ساد هم طبعاً د پښتو په (څاه) او د پارسي په( چاه) اوښتی دی.

دغه کلمه په همدې بڼه په ۱۱۶، ۱۲۲، ۱۳۲ نومرو کې بیاځلي راغلې ده.

۸۴- KAND(کند)

زموږ د اوسنی پارسي همدغه (کند) دی، چې په لرغوني پارسي او اوستا کې( کن) په پهلوي کې (کنتن) په زړه هندي کې (KHAN,KHANTI) او په پښتوکې کینل دی.(۱)

۸۵- OTEI(آوتیی)

دغه کلمه په ۸۹،۱۱۴ نومرو کې کټ مټ پرلپسې کارول شوې ده او هیننګ هغه د ANDOF HIM-IT په معنی لیکلې ده. په پښتوکې دغه کلمه اوس (اوتی) لولو یعنې (دهغه- او له هغه- او هغه) د کلمې په پای کې(یې) ژوندی اوسنی پښتو ضمیر دی، چې د ۱۸، ۷۸او ۸۱ لمبر ( تادیی) کلمو په پای کې هم راغلی دی؛ نو دا کلمه د دې ډېرلیک له کارول شویو دوو کلمو OT(اوت= او) + (پښتو یې) = (واز آن= له هغې) څخه ترکیب شوې ده. په پښتو کې دا جمله داسې وایو: ځای یې وکیند او اوبه یې تې وایستې.

۸۶- AB(اب) وګ: ۲۰، ۴۱، ۵۲

۸۷- OZ(اوز)

د ماریک او هیننګ د وینا له مخې UZ په لرغوني پارسي کې له کښته څخه پورته لور ته دیوه حرکت ښکاره کولو لپاره مختاړی و، چې په اوسنی پارسي کې( ازو) او په پښتو کې(ځنې) د هغه پاتې شوني لرو.

دا کلمه د په ځان پسې اړونده ده. (دویمه نسخه: AZOOACTO- دریمه نسخه: ZOACTI)

۱ - حواشي برهان، ۱۷۰۷

۸۸- OACT(وست)

اوس په پښتو کې دې فعل ته (ویست= اویست) وایو یعنې(بیرون برآورد) د (ویستل= ایستل) له مصدر څخه؛ نو له ۸۱ تر ۸۸ پورې د کلمو معنی داسې ده:

تادینی ای سادکند. اوتی آب اوزوست.

چې یو ځاه یې وکینده او له هغه اوبه راوایستې.

۸۹- OTHI(اوتیی)= (وازان)= (پښتو اوتی) وګ: ۵۸

۹۰-PID(پد)

د پښتو(په) او پارسي (به) معادل. وګ: ۶۸

۹۱- ACNGEITH (اسنګی اتهه= سنګ ته) دکلمې لومړی جزء لکه د۳۳ لمبر BAGE+ دی چې په اوستا کې هم ASENGAپه پخوانی پارسي کې ATHAGA(ATHANGA) په پهلوي او پارسي کې سنګ( تیږه) وه.۱ چې په پښتو (تیږه= سنګ) همدې کلمو ته نږدې ده. (په دویمه نسخه کې د دې کلمې دوه وروستي توري سولېدلي دي) خو د کلمې وروستی (E) د جمع لپاره دی لکه( بګی) چې په پای پورې یې ITH نښتی دی او غالباً همدا (ته) د ښخ په معنی دی، (سنګ ته) د تیږن تاداو مفهوم ښندي او د وروستي فعل مفعول دی.

( په دویمه نسخه کې DO او په درېیمه نسخه کې IDA)

۹۲- OILIRD( اوی لیرد)

۱- اولډپرشن ۱۶۶، برهان ۱۱۷۵

ماریک او هیننګ په پخوانی ایرانی کې WIDRTA د نیولي(HOLD)په معنی د دې کلمې معادل ګڼلی، چې د پارتي DYARD صفت ورسره سمون خوري؛ خو په پښتوکې د درېدل له مصدر څخه ژوندي او ناژوندي د درېدلو او ټینګېدلو په معنی (اویی درېد) دغه فعل ته نږدې دی.

په کوشاني ژبه کې تل د ګاونډیو ژبو (در) په(لر) اوښتی دی، چې کریستن سن د سغدي څېړنو په حواله( داندریاس تالیف) د ختیځ ایران د بېدیاو په بېلابېلو لهجو کې پر (لام) د (دال) اوښتلو ته نغوته کوي او وایي: د درواسپ نوم (د مزدیسنا له خدایانو څخه یو) د کوشاني کنیشکا (چې د ۱۲۵-۱۵۲م شاخوایي پاچاهي وه) پرسکو د ږیره ور خدای په بڼه له ځغاستونکي آس سره د لرواسپو په املا لیدل کېږي، چې اورل ستیین هغه همدا پارسي لهراسپ ګڼي.

پر دې کلمې سربېره پخوانی( دراس)کلمه په پښتو کې لور، په منجاني کې لروخ او په پارسي کې داس ده، چې په پخوانی زمانه کې پر دې اوړون دلالت کوي(۱)

نو د دې غږونو د بدلون له اصولو سره سم د کوشاني(اوی لیرد) په پښتو کې (ودرېد) کېږي. څرګنده نه ده، چې وروسته تر لام (I) د لام د زېر استازی دی،که د (ی) توري استازی؛ خو ښایي، چې یوازې د زېر

۱- مزدا پرستی در ایران قدیم، ۱۱۴.

استازی وي؛نو د پښتو (لر= در) ته نږدې دی او له۸۹ تر۹۲ پورې کلمو مفهوم داسې دی:

اوتيی پد اسنګی اته اوی ليرد

وازان (چاه) به سنگها ته قایم و بناشد

او د هغه کوهي بنسټ په تيږو کلک او جوړ شو.

۹۳-ATAN (اتن)

هيننګ احتمالاً د دې کلمې معنی (لکه چې ـ په دې ډول چې) ليکلې او د کلمې ريښه يې د اوستا AT د غائب جمع ضمير ښودلې ده او ۱۲۲ لمبر او تن، ۱۰۱ لمبر کلدن او ۱۰۷ لمبر تدن ته نغوته کوي او ماريک هغه د ۴۳ لمبر OT اړوند ګڼي، خو په هر صورت خپله پرېکنده رای يې نه ده څرګنده کړې.

زما په ګومان دا کلمه د پهلوي ETON ايتون يوه لهجه ده، چې د (دا رنګه) او (دا ډول) په معنی وه او په پخوانۍ پارسي کې AITAVANA په اوستا کې AETAVANT وه.(۱)

۹۴- AB (آب) وګ: ۲۰

۹۵- MALIZ (ماليز - مهادژ) وګ: ۲

۹۶- FAROKARAN (فروکرن)

ماريک د (فرو) د کلمې لومړی جزء د پخوانۍ پارسي له پرو، د اوستا پورو، د ختني بورو معادل او د ډېر او زيات په معنی يې ياد کړی

۱- حواشي برهان ۱۹۴، بارتولمه او نورو په حواله، د ايدون لغت د دري ادب په نثر او نظم کې ډېر کارېدلی دی.

دی، چې اوس په پښتو کې د پوره کلمه د کامل او بشپړ په معنی لرو، چې د افغانستان په پارسي کې هم مستعمله شوې ده او په ۶۱ کلمه کې هم په همدې بڼه او معنی راغلې ده.

هيننګ د (کرن) کلمې دوهم جز د نږه، PURE په معنی ليکلی؛ خو په څرګنده د ۶۵، ۷۵، ۹۳، ۱۰۱، ۱۰۷ ډلې کلمو، چې د حالت او اتصاف په روستاړي AN ختمې دي، اړيکه څرګندوي، چې ريښه يې د پارسي په کردن او د پښتو په کړ او کړل کې ليدل کېږي او په معنی کې يې موصوف او مفعول دخيل دی، يعنې کړی شوی؛ د ټولې جملې معنی به له ۹۳ څخه تر ۹۴ پورې داسې وي.

اتن آب ماليز فرو کرن.

ايدون (چينن) آب مادژ پوره کرده شد.

ايتون (داسې ) د مادژ اوبه پوره کړی شوې.

دا شرطيه جمله ده، چې اجزاء يې په وروستۍ جمله کې راځي.

۹۷- Ab (آب) وګ: ۲۰

۹۸، ۹۹- MAGAOEI (مګاوي)

ماريک دا کلمه د حال فعل GAV د اوستايي مصدر (تر لاسه کول، برابرول) له فعل څخه له ۱۰۵، ۱۱۰، ۱۱۲ افعالو سره سم، چې په همدغه HI روستاړي پای ته رسېدلی تعبير کړی دی. هيننګ هغه له هماغه GAV، چې په سغدي کې GW و، د (FAIL، TO WANT) په معنی راوړی او وايي، چې ښايي G د K د توري د تلفظ بڼه وي، چې د

دوو غبرونو (علت) تورو ترمنځ راغلی اود دریيم شخص (غایب) تمنـایي حالت دی.

د ۱۱۰، ۱۱۲ افعالو پر اساس که موږ دغه فعل تجزیه کـړو، بایـد درې جزه وي:

ما = مه نافیه او تحریمي + ګاو + یی، چې په هماغه افعالو کې هم په پیل نافیه(ما) نافي او په پای کې د (یی) روستاړی راغلی دی؛ نو اصلي فعل (ګاو) دی او که هغه له GAV څخه تر لاسه کولو یا غوښتلو په معنی فرض کړو، د جملې معنی باید (اوبه غوښتل) او (تر لاسه نه کـړی شـي) وي، چې د کلام له بهیر سره برابری نه کوي او کله چـې پخـوانی جملـه (داسې د مادڅ اوبه پوره کړی شوې) او همـدا رنګـه وروسـتی جملـه دا ثبات په حالت کې ګورو. (په داسې حال کې چې همدا جمله لـه ۲۶ تـر ۳۶ لمبر پورې د معبد د پرېښودو او نفې حالت درلـود) دلتـه ( مګـاویی آب) په نفې (اوبه ترلاسه نه شوې او یا ونـه غوښـتل شـوې) تعبیـرولای نشو.

زما اټکل دا دی، چې د (ګاو) ریښه، لکه څنګه چې هیننګ ویلـي په (کاو) کې ولټوو؛ نو په دې ځای کې دوه احتماله دي:

لومړی: په پارسي ـ دري کې کاویدن او کاوش د کاو لـه ریښـې څخه د کافتن او جستجو کردن په معنی و، دلیل یـې د عنصـري دا بیـت دی:

بکـــاوید کـــــالاش را ســـــربر

که داند که چـــه یافت زر و ګهر۱

نو په دې صورت کې باید د جملې معنی داسې شي:

(آب مورد جستجو نباشد = اوبه د پلټلو نه وي) (په هغـه صـورت کې چې موجودې وي).

دویم: له همدې ریښې، کاهیـدن او کـاهش د کمـي، نیمګړتیـا او کمول په معنی هم په دري کې وو،۲ چې د دې نظر په منلو سره د جملې معنی باید داسـې وي. ((اوبـه کمـی او لـږې نـه وي= آب کـم وکاسـته نباشد)).

په دې ځای کې د کوشاني پـر (ګ) د دري د (ک) د اوړون پـه اړه باید پټه پاتې نه شي، چې په دې ډېرلیک کې ځینې کلمـې شـته، چـې د هغو املا په (ګ) ده، پـه اوسـنی پارسـي ـ دري او پښـتو کـې یـې (ک) تلفظوو؛ خو د (یې) کلمې د دریيم جزء روستاړی، چې پـه دې ډېرلیـک کې په ۱۰۵، ۱۱۰، ۱۱۲ او نورو افعالو کې پرلپسې لېدل کېږي، د پښتو له همدې (یې = وي) سره چې د دریيم شخص (غایـب) د تمنـایي مضـارع حالت لپاره راځي، بشپړ ورته والی لري، چې معنی یې (وي = باشد) ده.

۱- لغت فرس ۴۱۷ او برهان، ۱۵۸۲.
۲- برهان، ۱۵۷۱.

آب مکاویی.

آب نه کاهیده باشد= اوبه نه وي لږې شوې.

۱۰۰- OD (اود) (د فارسي (و) = د پښتو (او): وګ: ۲۶.

۱۰۱- KALDAN (کلدن)

د ماریک د وینا له مخې دا کلمه د هماغـه ۲۷ او ۴۶ لمبـر KALD سره مرادفه ده، چې په پښتو کې د (کله) په بڼه پاتې ده؛ خو له دې کلمـې سره د AN روستاړي نښتل او ۱۰۷ لمبر تـادن غالباً د جملـو د ګرامـري حالت د غوښتنې پر بنسټ دي، چې کـټ مـټ همـدا مطلـب، جملـه او الفاظ له ۲۶ تر ۳۶ پورې د مطلقې ماضي په بڼه راغلي دي، چې د اوبـو د وچوالي د هغه د کموالي له املـه د بـګ لنـګ معبـد(مـادژ) لـه عبـادت کوونکو تش او پرېښودل شوی و، خو په دې جمله کې لـه ۱۰۰ تـر ۱۱۳ لمبر پورې ټول فعلونه په تمنايي مضارع او مستقبل پورې اړه لري؛ نـو د (کلد او تاد) استعمال د ماضي او کلدن او تادن د تمنـايي مسـتقبل لپـاره دي.

د کلمو د بڼې دا بدلون د کوشاني ژبې د ګرامر په قواعـدو پـورې اړه لري، چې اوس پرې موږ نه پوهېږو، خو په هر صورت د (کلد) معنـی (کله = هنګامیکه) ده.

۱۰۲، ۱۰۳، ۱۰۴_ (اس = لرو هو مینن = ی = ایر):

دا کلمې کټ مټ د هماغو ۲۸، ۲۹، ۳۰ کلمو تکـرار دی او معنـی یې هماغه ده، چې یادونه یې وشوه.



۱۰۵، ۱۰۶- BOO-EI (بوي)

ماریک د کلمې ریښه په BOV (وجود داشتن= شـتون، شـتوالي) کـې ښـودلې او ښـکاره ده، چـې د پهلـوي د بـودن او بـوتن د اوسـتا BAVAITI د سنسکریت BHAOTI مصدر د پخوانۍ آريايي BHAV یا BHU له ریښې څخه دی، چې د شتون معنی پکې نغښتې ده.

د دري د بودن مصدر پخوا تصرفېده، چې بم، بوم (باشم) بیم، بویم (باشیم) بی و بوی (باشی)، بید، بوید (باشید) بید (باشد)، بند، بوند (باشند) د هغه مشتقات وو. د هغه د شرحې لپـاره وګـورئ: د طبقـات الصـوفیه فرهنګ ۵۹۶ مخ کابل چاپ؛

نو ۱۰۵ لمبر BOO هم د مجهول اوږده واو پـه تلفـظ لـه همـدې ریښې په کوشاني ژبه کې و، چې په پښتو کې (بویه) د کوم شي د شتون د تاکید لپاره له هغې پاتې دی، چې هماغه د کوشـاني (OO) دی، خـو هغې د پای روستاړی (یی) هماغه دی، چـې د ۹۹، ۱۲۹، ۱۱۲ افعـالو پـه پای کې راغلی او په پښتو کې (یی = وي) د (باشد) په معنی پاتې دی؛ نو د بویه معنی ده: وي او شتون.

۱۰۷- TADAN (تادن)

دا کلمه په هماغه ۳۲، ۳۷ لمبر (تاد) تـه اړونـد ده، چـې اوس پـه پښتو او پارسي کې له هغه (تا) پاتې ده. د AN د ورنښتو پـه اړه مـې پـه ۱۰۱ لمبر کې شرح ورکړې ده، چې د تمنايي مستقبل د معنی لپاره دی او



معنی یې (تا که، چې تر څـو چـې) ده او تـر دې کلمـې وروسـتی (I) د بګییس له کلمې سره نښتی(موصول) دی.

۱۰۸- BAGEAC (بګییس) = (خدا پرستان= الله لمانځونکي)

د شرحې لپاره وګورئ: ۳۳، ۳۴ (په دویمه او دریمه نسخه کـې د دې کلمې ځینې توري سولېدلي دي).

۱۰۹- NOSHALM (نوشال _ نوشاد) وګ: ۳۵

۱۱۰- MAFROXOA SHONDEI (ما فرو خوشوند _ یی

د کلمې لومړی جزء (ما) د پښتو (مه) او د پارسي (م) د نفي، تحریم او منع ادوات دي، لکه د پارسي (مکن) او د پښتو (مه کوه) همدغه ادوات د ۹۹ او ۱۱۲ افعالو پر سر کې هم د تحریمي نفې لپـاره راغلـي دي. دا د نفې او تحریم (ما) په لرغوني پارسي، سنسکرېت او اوسـتا کـې هـم پـه همدې کارېده.۱

د (فرو) دویم جزء هماغه پخوانی یاد شوی مختاړی دی، چـې پـه دې ډېرلیک کې د ۱۷، ۳۶ افعالو په سر کې هم راغلی او تاکیـدي ادوات دي، چې شرح یې په ۳۶ لمبر کې ورکړی شوه؛

خو درېیم جزء د (خوشوندئی) هیننګ او ماریک له هماغه ۳۶ لمبر خورتیند سره له یوې ریښې څخه ګڼلی او د هیننـګ د وینـا لـه مخـې د درېیم شخص د مضارع جمع ده. په زیات اټکل په ND ختمېده. هیننـګ

۱ اولډ پرشن (۳۰).

وایي، چې د فروخوش او فروخورت فعلونه باید د عبارت له قرائینـو او له سیاق څخه اټکل شي، چې ریښه یې واضح نه ده.

د ۳۶ لمبر د فرو خورتیند کلمې په شرح کې، چې د ماضـي فعـل په بڼه کارول شوې، د هغې په معنی کې مې د ویجاړی یا له منځـه تـګ مفهوم ته نغوته کړې ده، چې (مـا فـرو خوشـوندیی) بـه غایـب جمعـې مضارع فعل وي.

یعنې، ویجاړ به نشي او متروک به نشي.۱

اوس د ډېرلیک یو پرلپسې تعبیر په دوو زمانو (ماضي او مضـارع) کې یو له بل سره پرتله کړئ:

| | |
|---|---|
| ماضي | او د کلداس لرو هومینن ی ایـر سـتاد. تـا دی بګییس ی نوشالم فرو خورتیند. |
| مضارع | او د کلدن اس لرو هومینن ی ایر بوبي. تـا دی بګییس ی نوشالم مه فروخو شوندیی. |
| ماضي ژباړه | او کله چـې د اور سـپېڅلی نېـک خـدایګوتی وځنډېد؛ (نو) د نوشاد خدای لمانځونکي تباه شول. |
| مضارع ژباړه | او کله چـې د اور سـپېڅلی نېـک خـدایګوتی وي؛ (نو) د نوشاد خدای لمانځونکي به تباه نه شي. |

۱- د دې کلمې املاء په لومړی او دویمـه نسـخه کـې د مـتن غونـدې ده، خـو پـه دریمـه نسـخه کـې داسـې، MAFROXWSHINDE ده.

۱۱۱- OTAN (اوتن)

د ماریک په نظر دا کلمه د OT (اوت) = (و) معادله ده، چې په دې ډبرلیک کې پرلپسې راغلې ده.

هیننګ هم هماغه OT ته نغوته کړې او د اوتن معنـی یـې AND OF THEM (او د هغوی= و ازیشان) لیکلې ده.

په څرګنده د کلمې جوړښت د هغې کلمې یا هغې ډلې کلماتو په څېر دی، چې په AN روستاړې پای ته رسېدلې دي او بېلګې یې پـه دې ډبرلیک کې ډېرې دي؛ خو له ۴۳ څخه تر ۴۵ جملې پـورې څرګنـده ده، چې OT له ماضي فعل سره کارول شوی اوپه دې ځـای کـې اوتـن لـه مضارع فعل سره راغلی او بیا هماغـه د ۱۰۱ لمبـر کلمـې قاعـده یعنـې (کلد- تاد) پر (اوت) هم عمل کړی او لکه چې (کلد) او (تاد) له مضـارع فعل سره د کارولو په حالت کې کلدن او تادن شوي، په دې ځـای کـې هم (اوت) ماضي فعل د استقبال په حالت کې په اوتن واوښت. پـه هـر صورت معنی یې هماغه د پارسي (و) او د پښتو (او) ده.

۱۱۲- MALIZ (مالیز)وګ: ۲، ۱۶، ۲۳، ۴۴، ۷۹، ۹۵، ۱۱۲، ۱۲۶.

۱۱۳- MAPIDORIXCEI (مه پیدور یخس یی)

دغه تحریمي فعل له ۴۵ لمبر پیدو ریګد سره هـم ریښـه دی او د ماریک د وینا له مخې له ایراني PAIK (ګذاشتن) او PRXS سغدي کلمه (پاتې کېدل) او د ختني له RORS (پرېښـودل) نږدېـوالی لـري.ښـایي د هماغه ۴۵ لمبر فعل مضـارع بڼـه وي، چـې پـه پښتـو کـې (پرېښـيږ = پرېږدئ) له دې ریښې سره په همدې معنی نږدېوالی لري او د (مـه پیـدو ریخس یی= مه پرېښ یی) په معنی به وي، یعنـې مـالیز بـه پرېنـږدي او خوشې به یې نه کړي. اوس دواړه جملې په مضارع او ماضي حالت کې ګورو:



| | |
|---|---|
| ماضي | اوت مالیز پیدو ریګد |
| ژباړه | او معبد نېست (ویجاړ) شو |
| مضارع | اوتن مالیز ماپیدور یخس یی |
| ژباړه | او معبد به نیست(ویجاړ) نشي |

۱۱۴- OTEI (اوت یی)

په پښتو کې اوتی = او هغه ، او د هغه (وګ: ۸۵ - ۸۹).

۱۱۵- ACACKOM (اسکوم؟)

ددې کلمې ریښه ما ته مجهوله ده، خـو هیننـګ د هغـې ریښـه د استنادي نیم طاق او خام کوب په معنـی د پخـوانی ایرانـی HATCHA-SHAMBA کلمو ته رسولې او په ش یا س د پخوانيTCH د بدلون پـه اړه د همدې ډبرلیک په AS کلمې په پارسي کې پـه (از) تبـدیل شـوی، استناد کوي، چې په لرغوني پارسي کې HATCH (هیچ) و. هغـه وایـي، چې د دې ډبرلیک یو شمېر کلمې د پخوانیTCH (چ) استازیتوب کوي.

که چېرې د هیننګ دا نظر ومنو؛ نوښـایي اسـکوم (خـام کـوب) د وروستی کلمې (ساد = چاه) صفت وي(؟).

۱۱۶- CAD (ساد = چاه) وګ: ۸۳.



۱۱۷- AXSHTRIG (اخشت ریگ)

دا کلمه ماریک د شک له قید سره د ژور سوچ، ناظر او څارونکي په معنی لیکلې، چې له ځای سره سمون نه خوري.

زما په عقیده دا کلمه له وروستی کلمې (کرد) سره اړونده او یو فعل دی، چې درې جزه لري:

اخشت + ریگ + کرد.

لومړی جزء اخشت یې همدا د پارسي اوسنی خشت او د پښتو خښته ده، چې په پهلوي کې XISHT په اوستا ISHTYA او په سنسکرېت کې اشته کا ISHTAKA وه.۱ خو دویم جزء RIG کلمه د پارسي او پهلوي له ریز ـ ریختن د اوستا له RAECAYT RAEC (بهر تویولو) مادې څخه دی، چې په دې ځای کې د بنیاد ریختن= بنسټ ایښودلو معنی لري او اخشت ریگ باید خشت ریز= خښتې یې ولګولې وژباړو. دا کلمه په ۱۲۴ لمبر کې بیا ځلي راغلې ده.

۱۱۸-KIRD (کرد)

همدا د پارسي کرد دی، چې په ۱۲ لمبر کې هم راغلی دی، خو په هغه ځای کې اصلي فعل او دلته د پخوانی اخشت ریگ له کلمې سره مرستیال فعل دی.

۱- حواشي برهان، ۷۵۰.

۱۱۹- ALBARG (آل برگ)(۱)

ماریک دا کلمه دوه جزه ال + برگ گڼلې ده، چې (ال) د (با – همراه= سره) په معنی اوستایي HADA ته رسېږي او د د ویم جز (برگ) یې دېوال،باره او برج گڼلی دی، خو هیننگ وایي، چې دا کلمه دوه جزه نه ده او ښایي، چې هغه دمرستندوی او مددگار په معنی د لرغونې پارسي HADBARA وگڼو، خو ۱۱۹ او ۱۲۰ کلمې (البرگ ستاد او ایتهوات) باید په خپلې پخوانی جملې پورې اړوندې وي، یعنې دڅاه دحالت بیان وي، چې په تېره جمله کې راغلی دی. که د مرستندوی او مددگار معنی معتبره وگڼو نو دلته به څه ډول معنی ورکړي؟

زما په آند دا کلمه له دوو برخو څخه جوړه ده، چې په کوشاني ژبه کې د یوې مرکبې کلمې په بڼه راغلې ده، آل + برگ په دې تفصیل:

AL (آل): څرنگه، چې د لام او (ر) بدلون د افغانستان په لهجو کې عمومي دی، لکه دیوار = دېوال، غربېل = غلبیل، چې ۵۹ لمبر کې دې موخې ته نغوته وشوه؛ نو د کوشاني آل (آر) ته رسېږي، آر او آره په پښتو کې له پخوا څخه د اصل او بنسټ په معنی و او د ډاکټر گیگر د وینا له مخې، د آرین کلمه هم له (آر) څخه مشتقه ده، چې په سنسکرېت کې یې د اصل او بنسټ معنی درلوده.۲

۱- په دویمه نسخه کې د دې کلمې څلور توري نه لیدل کېږي.

۲- تمدن ایرانیان خاوری ۱، ۶۵.

اکبر زمینداوري د پښتو ژبې شاعر د ۸۰۰هـ په شاوخوا کې ویلـي دي:

د غم آره یې سوه ټینګه زما په زړه کې
د رقـــیب ســـره خـندا کړي هوسېږي

شاعر ملا الف د ۱۰۱۹هـ په شاوخوا کې په بحرالایمان کې وایي:

دی لـــــه آره و ښـــاغلی
څه که سو په ویر نتلی

پیر محمد میاجي (۱۱۳۵هـ) وایي:

شیخ متي چې خلیلي و
دی له آره لوی ولي و[1]

نو ځکه د کوشاني (آل) د بنیاد، بنسټ او شالو دې په معنی د پښتو له پخواني (آر) سره معادل دی. دویم جزء (برګ هماغه کلمه ده، چې پـه ۱۱ او ۶۵ لمبر کلمو کې هم په نامو برګ (نامور) او برګان کې راغلـې ده. (بر) د پښتو او پارسي همدا د اتصـاف روسـتاړی (ور) دی؛ نـو آل بـر = آرور (بنیاد ور = بنسټوال) دی، چې د کوشاني ژبې د نورو کلمو په څېـر ورسره د اتصاف او نسبت (ګ)نښتی دی. په ۱۱ لمبر کې یې شرح تېـره شوه.

۱۲۰-WCTADOITHOAT (استاد و اتهوات) (۳[1])

۱- د تفصیل لپاره وګ، د پښتو ادبیاتو تاریخ۱، ۲۱.

اوستایي ختیځپوهانود را له (اتهـ) او (ات) څخه جلا کـړی او پـه معنی کې یې زړغی او ټکنی دی او د اتهـ په معنی کې ستنه، تېر او لاړی راوړي دي؛ خو زما په نظر دا کلمه یـو مطلـق ماضـي مجهـول متعـدي مصدري فعل دی، چې ریښه یې هماغه ۲۵ او ۳۱ لمبر (ستاد) ده، چې په هلته مطلق معروف مفرد غایب ماضي و او دلته په مجهوله توګـه د (چـاه خشت ریز) ته راجع شـوی دی او ۱۱۹، ۱۲۰ جملـه د نومـوړي کـوهي بیاني حالت دی، چې (البکرګ استاد واتهوات) داسې معنی ښندي:

(نوموړی کوهی) بنیاد ور (پر بنسټ) جوړ کړی شـو؛ نـو لـه ۱۱۴ څخه تر ۱۲۰ پورې دټولې جملې معنی داسې ده:

اوت یی اسسکوم ساد اخشت ریگ کرد. البرگ استاد واتهوات.

((او (څرنګه) چې (یې) د څاه په خام کومب کې خښتې ولګـولې (نو نوموړی څاه) بنیاد ور ودرېده.))

پټه دې نه وي، چې همدغه OAT د ۱۲۸ فعل په پای کـې هـم د مجهول ماضي لپاره راغلـی دی، چـې پـه ۸۰ لمبـر کـې یـوازېAT د معروفې ماضي لپاره و.

۱۲۱- PIDEIN (پدین)(۲)

لکه څرنګه چې په ۶۸ لمبر شرح کې تېر شول، د پارسي د همـدې (به) او پښتو (په) پخوانی ښه چې د اضافي قیـد تـوري دي پـه تورفـاني

[1] - دا د لومړی نسخې خوندیینه ده، دویمه ITHAATO درېیمه نسخه IDAATI

۲- لومړی او دویمه نسخه د متن په څېر. درېیمه نسخه، : PIDEINI.

پهلوي کې (پذ) په اوستا کې (پیتی) و؛ نو دکلمې لومړی جز همدا( پد) د (به) په معنی دی، خو دویم جزء یې د پارسي (این= دا) دی؛ نو پدین کټ مټ همدا د پارسي (بدین = باین= په دې) دی، چې په دري ادبیاتو کې دود و او د (پد) پخوانی بڼه په همدې کلمه کې پاتې شوه، چې (بدان او بدو= په هغه) هم له همدې جملې څخه دي او هماغه پهلوي (پذ) او کوشاني (پد) له (آن- این - او) سره رغېدلي دي.

فرخي وايي:

بدین شایستگی جشنی، بدین بایستگی روزی
ملک را در جهان هر روز جشنی باد و نوروزی

فردوسي وايي:

بدین چهر و این مر و این رای و خوی
همی تخت و تاج آیدت آرزوی

دا کلمه په ۱۲۳ لمبر کې هم راغلې ده او باید وویل شي، چې د ژبو کلمې تل له خپلې پخوانۍ بڼې څخه د وخت په تېرېدو د زمانې په تغییر سره اوړي او کله یوه کلمه سپکېږي او ترخیم مومي؛ خو ډېر لږ یې پخوانی بڼه په مرکباتو کې پاتې کېږي، لکه پخوانی (پد) چې په (به = په) واوښتۀ؛ خو لرغونې بڼه یې په (بدین = بدو = بدان) مرکباتو کې پاتې ده. (وگ: ۶۸).

۱۲۲- CAE (ساد = چاه) وگ: ۸۳، ۱۲۲.

۱۲۳- PIDEIN (پدین = بدین)[1] وگ: ۱۲۱.

۱۲۴- AXSHTRIG (اخشت ریگ - خشت ریز) وگ: ۱۱۷.

۱۲۵- HAROGH (هروهگ)[2]

د هیننگ د وینا له مخې دا کلمه له HARUVG څخه مشتق ده، د بشپړ او پوره په معنی. په پارسي او پښتو کې (هر) عمومي معنی افاده کوي او ریښه یې په لرغونې پارسي کې HARUVA (همه= ټول) په اوستا کې HAURVA او په پهلوي کې HARVISP د (همه= ټول) د بشپړ او پوره په معنی و، چې د ایران په زازا لهجه کې تر اوسه HERGU د (همه = ټول)په معنی شته.[3]

نو کوشاني (هرو هگ = همه) لکه د دې ډېرلیک ۱۱، ۲۴، ۶۷، ۱۱۹ کې د (گ) پای صفاتو په څېر دی چې د وروستي ۱۲۶ مې مالیز کلمې صفت دی، یعنې (ټول مالیز).

۱۲۶- (MALIZ مالیز - مهادژ)

وگ: دویم لمبر چې په دې ډېرلیک کې اووه ځله تکرار شوی دی.

۱۲۷- XOHZ (خوهز)

د هیننگ او ماریک د وینا له مخې د سغدي XWTZ یا XUVJ او د پارتي له XWJ سره د ښکلي په معنی معادل دی، چې په پښتو کې (خه

[1] په دویمه او دریمه نسخه کې د دې کلمې څو توري الوتي دي.
[2] په دویمه او دریمه نسخه کې د دې کلمې لومړی توري الوتی دی.
[3] اولډ پرشن ۲۱۴ برهان ۲۳۱۸.

= ښه = هو = خو) له دې کلمې سره نږدېوالی لري، په اوستا او پهلوي کې (هو) په سنسکرېټ کې (سو) او په دري کې (خه) و، خو د پای روستاړی يې (هز = يز) دی، چې تر اوسه د پښتو د اتصاف په روستاړي کې موجود دی، لکه غر = غريز، سر = سريز (سره)۱ نو خوهز د ښه او ښکلي په معنی په دې جمله کې د وروستي ۱۲۸ فعل صفت او حالت دی.

۱۲۸- POROOAT (پورووت)

د ۸۰ کلمې پوروګت په شرح کې تېر شول، چې هيننګ هغه د پالنې او څارنې په معنی راوړې او داسې ښکاري، چې پوروګت مفرد غايب ماضي فعل و او (پورووت) د مفرد غايب مطلقې ماضي مجهوله صيغه پر ۱۲۶ ماليز نامه پورې اړونده وي، يعنې ماليز ښه جوړ شو. په دې اړه ۸۰، ۱۲۰ لمبر وګورئ، چې ۱۲۰ فعل کټ مټ لکه د دې مجهول فعل په څېر په OAT پای ته رسېدلی دی. اوس له ۱۲۱ تر ۱۲۸ لمبر پورې د جملې معنی داسې ده:

پدين ساد پدين اخشت ريګ هرو هګ ماليز خوهز پورووت
بدين چا (و) بدين خشت ريز تمام ماليز خوب پرورده شد.

په دې ځاه (او) د خښتو په دې ټوټو ټول ماليز ښه وپالل شو.

۱۲۹- OT (اوت = و)

وګ: ۴۳، ۱۲۹، ۱۴۷، چې شرح يې په ۲۶ لمبر کې هم راغلې ده.

۱- دغه ورستاړی په دې کتيبه کې AS هم راغلی دی او اوس په پښتو کې په دوو بڼو (يز = يځ) موجود دی.

۱۳۰- EII (ايی = يو = يک) وګ: ۶۹، ۸۲، ۱۴۸.

۱۳۱- M (م)

دا روستاړی اضافي او تمليکي رابط دی، چې د دويمې کلمې په پای کې هم راغلی دی.

۱۳۲- CAD (ساد = چاه) وګ: ۸۳، ۱۱۶، ۱۲۲.

۱۳۳- (اود) = (پښتو او = پارسي و): وګ: ۲۶، ۷۰، ۱۰۰.

۱۳۴- MASHT (مشت)

هيننګ پر ته له تفصيله د شک له قيد سره دهغه معنی ماته ليکلې، چې د استعمال له ځای سره سمون نه خوري او دا کلمه به د وروستۍ (۱۳۵)کلمې صفت وي.

په لرغونې پارسي کې MAIHIYAH په اوستا کې MASYAO په دري کې مه و مهمست MAILEST په کردي کې MASTIR او په پښتو کې مشر دی، چې د ټولو معنی مشر، لوی اولا لوی ده(۱) او په لرغونې پارسي کې MATIHSHTA د لامشر او وليعهد په معنی و؛۲ نو دلته هم مشت د مشر او لوی په معنی د وروستۍ کلمې خرګومن صفت دی.

۱۳۵- XIRGOMAN (خرګومن)

هيننګ د دې کلمې په معنی کې ټکنی دی او وايي، چې پارسي خرمن د THE GREAT FORE COURT په معنی دی.

۱- حواشي برهان، ۲۰۸۵.
۲- اولډ پرشن ۲۱۰.

د هیننګ دغه شکمنه وینا ښایي حقیقت ته نږدې وي، په دې معنی چې د خرمن کلمه په پارسي کې یوازې د غلې او نورو څیزونو د ډېـري په معنی نه ده او میاشتې (هالهٔ) ته یې هم خرمن ماه ویله.

حافظ وایي:

آسـمان گـو مفـروش ایـن عظمـت کانـدر عشـق

خـــرمـــــن مـــــه بجو، خو شهٔ پروین بدو جو۱

پټه دې نه وي، چې د خرګاه په کلمه (د پراخه ځای په معنی) کـې هم همدا ریښه لیدل کېږي او هماغه خرمن ماه ته یې خرګاه ماه هم ویلـه (برهان ۷۳۶). البېروني د التفهیم په کتاب کې او ابن سینا په دانـش نامـه علایي (منطق ۷۸) چې دواړه کتابونه د ۴۲۰هـ شاوخوا لیکل شـوي دي، خرمن یې د هاله په معنی راوړی دی؛ نو د خرمن په معنی کـې ګونـدې دغولیاو احاطې مفهوم له پخوا څخه شامل و. دا کوشـاني خرګـومن لـه پخواني صفت (مشت) او خپل وروستي فعل (کـرد) سـره داسـې معنـی ښندي:

اوت ایـی م سـاد اود مشــت خرګـومن کـرد

ویـــک چـاه و بزرګ صحن کـرد (سـاخت)

او یو څاه او لوی انګړ یې جوړ کړ.

۱ -برهان، ۷۳۹.



هېر مونه شي، چې په کوشـاني ژبـه کـې لکـه پښـتو صـفت تـر موصوف مخکې راته، له دې امله مشت له خرګومن دپخوانی مخه دی.

۱۳۶- KIRD (کرد = کرد) وګ: ۱۲

تر دې ځایه موضوع د بغلان د نوشاد معبد د بیا رغـونې موضـوع وه. تر دې د بیا رغونې پلاوي خپل نومونه داسې راوړي دي:

۱۳۷- AM (ام)

په اوسنی پارسي کې مفرد متکلم ضمیر دی، لکه جامه ام، خانه ام، من ده ساله ام او په پښتو کې (یم) د (هستم) په معنی شته.

په سنسکرېت کې OHAM په یوناني کې HOM و.۱

په دې ډېرلیک کې په وروستیو کرښو کې هلته، چې د معبـد د بیـا رغونې د پلاوي نومونه ثبت شوي، تر ټولو مخکې AM راغلی، یعنې یـم = (هستم) او دا پخوانی دود دی، لکه چې پـه بهسـتان کـې د اریـوش ډېرلیک داسې پیل شوی دی:

ادم داره یه وه اوش (منم داریوش...)

(وګ: ۱۳۹، ۱۴۱، ۱۵۰، ۱۵۲)

۱۳۸- BORZOMIHR (بور زو مهر)

نوم دی، چې په پخوانی زمانه کې د ایـران پـه ټولـو ښېـدیاو کـې کارېده او ظاهراً له دوو جزو څخه جوړ دی:

بورز، برز د لوړ، غټ او پرتمین په معنی، عنصري وایي:

۱- اولډ پرشن ۱۷۴.



فـروکـو فـــتند آن بتان رابگرز
نه شان رنگ ماند و نه فرو نه برز۱

فردوسي:

بکشت آن جنان اژدها را بگرز
جهان گفت اورا زهی فـرو برز۲

همدی وايي:

بـدين چـــهر چـــون ماه و اين فرو برز
بدين يال و شاخ و بـدين دست و گرز۳

د دې کلمې رېښه په اوستا کې BEREYAITI د لوړوالي، غوندۍ او غرۀ په معنی ده،۴ خو د هغه دويم جزء د پارسي مهر (پښتو مير) د لمـر په معنی دی، چې په سنسکرېت کې MITRA په اوستا او لرغونې پارسي کې MITHRA په پهلوي کې MITR و، چې د مهر، دوستی د روښنايي د پروردگار په معنی دی او يونانيانو د لمر خدای MITHRES بللی دی.۵

دا نوم په پهلوي او دري کې برز مهر - بزرگمهر - برز متر(۶) او په شهنامه کې بوزر جمهر دی، چې د نوشېروان په داستان کـې د پـوهې او

---

۱- لغت فرس، ۵۱.
۲- شهنامه درېيم ټوک، ۷۸۳۴ بيت.
۳- شهنامه ۴ ټوک، ۹۶۳۴.
۴- حواشي برهان، ۲۵۴.
۵- حواشي برهان، ۷۰۶۱.
۶- سبک شناسي، ۱، ۵۲.

عقل سمبول او د پاچا له پوهو استازيو څخه يو دی، چې د مروې و(۱) او بزرمهر د يادگار په نامه له هغه څخه په پهلوي ژبه کې پندنامـه پـاتې ده، چې په هغې کې يې خپل نوم بزرگ مهر بختگـان د کسـری د شهنشـاه د دربار حاجب معرفي کړی دی.(۲) په هر صورت د کوشاني پېـر لـه دې ډېرليک څخه ښکاري، چې دا نوم يې د خاص په توگه په پخوانی زمانـه کې کاراوه او په آريـايي لهجـو کـې يـې بېلابېلـې امـلاوې او تلفظونـه درلودل. بوزر جمهر يې د اسلامي دورې معربه بڼه ده، چې معنی بـه يـې (آفتاب شکوه = پرتمين لمريا بلندمهر = لوړ لمر) ده.

د مهر (لمر) کلمه په پخوانيو اعلامو د کارېدو وړ وه، لکـه چـې د روزگان په برليک کې د افغانستان د هفتالي پاچـا نـوم مهراکـولا دی. د کوشانيانو په زياترو سکو کې، چې پر يوه خـوا يـې د لمـر خـدايگوتی انځور شوی، په يوناني تورو يې پر هغه د (مهر) کلمه ليکلې ده.

د ۳۴۰ شاوخوا د گندهارا دوه کسه عالمان د ديـن د تبليـغ لپـاره چين ته تللـي دي، چـې يـوه يـې دهـارا ميتـرا نومېـده(۳) همدارنگـه د بلوچستان په لورلايي کې په خروشتي ليک د کنشـکا د يـوه ځايناسـتي ډېرليک موندل شوی، چې په هغه کې د شاه يولا مهرا نـوم ليکـل شـوی دی.(۴) يو له تاريخي نومونو څخه چې د برز کلمه پکې استعمال شوې د

---

۱- شهنامه دويم ټوک وروسته له، ۹۷۱۶.
۲- متون پهلوي د بمبيي چاپ، ۱۹۱۲.
۳- تاريخ افغانستان ۲، ۲۸۱.
۴- کتيبه های خروشتي از ستبن کونو ۲، ۱۸۱.

د پارس له شهریارانو څخه د یوه نوم (وهو برز VAHUBORZ)دی، چې د کریستن سن د وینا له مخې که هماغه برز وي، چې د پارس یوناني ساخلوي مقدونیانوپه وخت( دریېمه ق.م پېړی) کې یې پارس قتل عام کړ(۱)او څرګنده ده، چې وهو برز = ښه + پرتم معنی ورکوي.

په هر صورت: ښایي همدا د بغلان ډېرلیک تر ټولو پخوانی سند وي (دویمې مېلادي پېړی څخه) چې دا نوم په پخوانی ښه پکې خوندي دی، څکه بوزر جمهر د لومړي خسرو انوشېروان (۵۳۱- ۵۷۸م)وزیر په شپږمه مېلادي پېړی کې ژوند کاوه، که چېرې د اسلامي پېر روایات د اعتبار وړ وګڼو، یو برزمهر د ارد شېر بابکان په دربار (۲۲۴- ۲۴۱م) کې هم ژوند کاوه، چې د دربار له حکیمانو څخه و.(۲)

د برزو مهر نوم د دې ډېرلیک د هغه د زوی له نامه امهرامن سره په ۱۵۵،۱۵۳ او ۱۵۴ لمبر کې لمبر کې پرلپسې راغلی او قوي احتمال دی، چې دواړه نومونه به د یوه شخص وي. ظاهراً باید ووایو، چې لومړی ۱۳۸ لمبر برزومهر د ۱۵۵ لمبر امهرامن پلار دی، چې د معبد د بیا رغونې د کومېټې بل غړی به وي.(۳)

۱۳۹- AM (ام = یم) (۳) وګ: ۱۳۷، ۱۴۱، ۱۵۲.

---

۱- ساسانیان، ۵۰.

۲- مجمل التواریخ والقصص.

۳- په دریېمه نسخه کې: BORZOMIOR (برزومېور).

۱۴۰- KOZGASHKI= POHR (کوزګاشکی پوهر) _ (کوز ګاشکازاده)(۱)

کوزګاشکا د کوشاني (خاص) ځانګړی نوم دی او د ماریک د وینا له مخې د ۱۱ او ۱۴۳ لمبر له خاصو کوشاني نومونو سره سمون لري، چې د خپل ګرامري حالت په غوښتنه یې د پای A په (O-I) اوښتی دی، څکه په ختني ژبه کې هم هغه نومونه، چې په A ختم شوي د رفع په حالت کې په مفرد ډول په (I) ختمېږي، خو په دلته د پوهر (پسر = پور) کلمه، چې په ۵۵ او ۱۵۳ لمبر کې هم راغلې د (O) له فاصلې پرته له دې نامه سره یو ځای شوې او ښکاره ده، چې معنی یې کوزګاشکازاده = کوزګشکي پور ده او په هغه پېر کې پلرني نسبتي نومونه هم موجود وو، لکه عربي ابن خلاد او ابن خلدون د پارسي کاظم زاده، پښتو محمدزی او اوسنی روسي غفوراوف. ښایي د پلار د اصل نوم به کوز ګاشکا و. څرنګه، چې پوهر = پوربان کلمه مضاف شوې، په اضافي حالت کې الف په ی اوښتی. (په دریېمه نسخه کې: PHRO)

۱۴۱- AM (ام - یم) وګ: ۱۳۷، ۱۵۰، ۱۵۲.

۱۴۲- ACIL-O-GANCEIGIAM (ایستل ګانسیګی ام)

ماریک استیلو ګانسکي یوکوشاني نوم شمېرلی دی، چې د معبد د بیا رغونې د پلاوې په ډله کې و، خو په دې لوستنه کې ستونزه منځ ته راکېږي، چې د ګانسیکی په پای کې د (O) فاصله نه شته؛ نو له دې امله

---

۱- په دریېمه نسخه کې د دې کلمې پر ځای KIRI (؟).

باید د پای AM د همدې کلمې جزء وګڼو، نه لکه AM د (ام ـ یم) په معنی، چې مخکې تېر شو او وروسته راځي او تل له مخکې کلمې او خپل روستاړي څخه د (O) فاصلې په نښه جلا کېږي؛ نو له دې امله بایدهغه ګانسیګیم ولولو.(۱)

دویم: دا چې د استیل لومړی کلمه په یوه (O) واټن له ګانسیګیم څخه جلا شوې، له دې امله استیل + ګانسیګییم هم باید بېل او خاص نوم ونه ګڼو، بلکې هغه باید د وروستي نوکونزوک (چې د ۴۷ لمبر له مخې د بیا رغونې د پلاوي رئیس دی) صفت یې وګڼو.

د دې صفت لومړی جزء (استیل) دی، چې که پر (ر) د لام دبدلون د اصولو له مخې، چې په دې ډېرلیک کې په نورو کلمو هم کې څرګند دی، وروستی توری په (ر) بدل کړو (استیر) کېږي، چې د پښتو (ستر - رئیس او مشر) ته نږدې دی او څرنګه چې د پښتو دې ستر په تاریخي کلمو کې ریښه درلوده او د استعمال وړ و؛ نو تاریخي دلیل شته په دې ډول: د لسمې یسنا په ۱۰ او ۱۱ بند کې د افغانستان د غرونو، د هندوکش لړی او د بابا غره بحث په ترڅ کې د سترو ساره STAROSARA څوکه یاده شوې ده(۲) چې دا نوم هم ستر + سر (لوړ سر) یا (بلند سر) تعبیرولای شو او ښایي، چې همدا د اوستا او پښتو ستر په کوشاني ژبه

۱- درېیمه نسخه: HACTILOGANZIGO.

۲- مزاد پرستي در ایران قدیم، ۷۵ م. له کرستین سین لرغونی ایران د لغت نامې په حواله له بارتولومه او ایرانشهر مارکورات.

کې (استیل) وي، د معنی په ټاکلو او د ګانسیګییم په تجزیه کولو نه پوهېږم؛ خوپه دې دلیل، چې د AM تر تورو وروسته په فاصلې (O) له ګانسیګې څخه جلا شوی نه دی؛ نو له دې امله هغه بېل او خاص نوم نه ګڼم، د نوکونزوک صفت یې ګڼم، ځکه که چېرې استیل ګانسیګییم بېل نوم وای، هرومرو د هغو قواعدوپر بنسټ، چې په دې ډېرلیک کې ټول په پام کې نیول شوي له وروستي AM څخه د فاصلې (O) په واسطه سره جلا کېده.

ښایي، چې استیل + ګانسیګییم د کوشاني دولت د مامورینو لقب یا د کوم منصب نوم وي، چې نوکونزوک هغه د خپل نامه په سر کې پر کورنی مرتبې او خپلې کنارنګي سربېره هغه لیکلی وي او استیل لکه د پښتو ستر د رئیس، مشر او د یوې دولتي شعبې د چارو مشر ګانسیګییم؟ مفهوم درلود.

۱۴۳- NOKONZIKI-KARALRANGE-MAFEG

(نوکونزیکی + کرل رنګی + ماریګ)

نوکونزیکی هماغه ۴۷ لمبر نوکونزوک د معبد د بیا رغونې د پلاوي د مشر نوم دی، خو دلته د ګرامري حالت له غوښتنې سره سم نوکونزیکي شوی دی. دویمه کلمه هماغه ۴۸ لمبر کرل رنګ ده، چې په پای کې یې E د جمع نښه راغلې، لکه ۹۸، ۱۰۸ کلمې، خو درېیمه کلمه (ماریګ یا مریګ) د هیننګ په عقیده د SUBHERVIENT (ګټور = ارزښتناک) په معنی ده. په داسې حال کې، چې د ماریک نظر په دې اړه

حقیقت ته نږدې دی؛ ځکه چې دا کلمه د وردګو په خروشتي ډبرلیک کې د دوو ورونو په نومونو کې شته او په نیه NIYA اسنادو کې هم د یوه نامه او خاص نامه په توګه پېژندل شوی دی.

د وردګو د خوات خروشتي ډبرلیک، چې د کانیشکا د زوی هوویشکا (۱۸۲م) پر پېر لیکل شوی، د هغه له متن څخه دغه مطلب ښکاره دی:

((د کنیشکا پېر پر ۵۱ کال د هوویشکا پېر د ارته مې زیوس (یوناني) میاشتې پر ۱۵مه د ماریګا کورنۍ یو کس، چې نو م یې واګره ماریګا د کمه ګویا زوی د هشتومه ماریګا ورور و، دا معبد یې په خووادا کې د واګره ماریګا معبد په نامه جوړ کړ))(۱)

د دویمې مېلادي پېړۍ له دې متن څخه ښکاري، چې ماریګا، مریګ د کانیشکا او د هغه د زوی هووشیکا د پېر د یوې مشهورې کورنۍ نوم و(۲) نو همدا د بغلان معبد د بیا رغونې د پلاوي مشر نوکونزوک ماریګ هم ښایي د کنارنګانو همدې کورنۍ ته منسوب وي.

ښکاره ده، چې د خیر او ځواکمنه کورنۍ د کوشاني دربار له ارکانو څخه وه، چې د معبدونو په بیا رغولو کې یې لاس درلود.

۱۴۴- PID (پد، په، به)

---
۱- د خوات د ډبرلیک د ژباړې تلخیص، ۳۰۲ م.
۲- د افغانستان تاریخ.

وګ: ۶۸، ۹۰، ۱۲۱، ۱۲۳؛ خو د دې کلمې توپیر له نورو بېلګو سره د کارولو په صورت کې داسې دی، چې تر یوې (O) فاصلې څخه د (I) اضافي کلمه راغلې او دا اضافت د ۲۹، ۳۲، ۳۴، ۴۷، ۴۹، ۵۳، ۵۶، ۶۸، ۱۰۳، ۱۰۷ کلمو په پای کې هم راغلی دی، خو په ۶۸ لمبر کې کټ مټ په همدې توګه کارېدلی دی. په دې صورت کې د پښتو (په یې) = (پې) ته ډېر نږدېوالی لري او له وروستیو کلمو سره (پی خدای فرمان) کېږي.

۱۴۵- XOADE (خودی)

دا د ۴۹ لمبر خودی وګ د کلمې مجرده بڼه ده، چې د هیننګ په عقیده پارسي خدیو هم له هغو څخه جوړ شوی دی او دلته تر مقصد کوشاني امپراتور دی. د خدای فرمان په معنی. وګ: ۴۹ لمبر.

۱۴۶- FROMAN (فرومان - فرمان)

دا کلمه په لرغونې پارسي کې د امر او حکم په معنی FRAMANA فره مانه وه، چې په پهلوي کې FRAMAN په پارسي کې فرمان، په پښتو کې پرمان او په سنسکریت کې PROMANA ده. په لرغونې پارسي کې FRAMATAR فره ماتر (فرماندار، حاکم) له دې ریښې څخه دی.(۱) سعدي وایي:

---
۱- اولډ پرشن، ۱۹۸.

مـــــهتری در قـــبول فرمان است
ترک فرمان دلیل حرمان است(۱)

۱۴۷- OT (اوت - و - د پښتو او) د OD (اود) يوه بڼه ده، وګ: ۲۶.

۱۴۸- EIIOMAN (ايومن)

ماريک او هيننګ په پرېکنده او يقيني توګه په دې اړه څـه نـه دي ويلي. د EII لومړی جزء په ۸۲، ۱۳۰ لمبر کې هم راغلی، چې د پښتو يو او د پارسي يک دی. من د هغه روستاړي دويم جـزء دی، چـې د ځينـو پخوانيو نومونو په پای کې ورنښلي، لکه د دې ډبرليک وهومنه - بهم - به منش او ۱۵۱ لمبر ميره من او ۱۵۵ لمبر اميره مـن، چـې د (مـن) ريښـه د پښتو په منل او د پارسي په منش کې پـاتې ده. پـه کوشـاني پېـر کـې د ګندهارا يو عالم، چې د کاپيسا د پاچاهانو له اولاد څخه يې د هنـدوکش په سوېل کې شهرت درلود، د ګونا وارمن GUNAVARMAN پـه نامـه پېژنو، چې د نامه په پای کې يې همدا (من) دی(۲) نـوويلای شـو، چـې ايومن (يـک مـنش) و او وروسـته د پارسـي ايمـن(ayman) او د پښـتو ايمن(iman) کلمه له هغه څخه جوړه شوې ده، چـې د سـاتنې امنيـت او تسلي ورکولو مفاهمي لري(۳) او ګومـان کېـږي، چـې دا ۱۴۹ نوبخـت صفت دی او ښايي د هغه شخص د لويـو منصـبونو لقـب وي، چـې تـر

۱- ګلستان، ۴۷.

۲ - تاريخ افغانستان، ۲، ۲۷۸.

۳ - عروضی په چهار مقاله، ۸۰ مخ: چون فردوسي ايمن شد ازهري روی په طوس نهاد.

کوشاني شهنشاه وروسته به يې فرمان ورکـاوه او همدغـه نوکـونزوک د خدای (پاچا) او ايمن نوبخت په فرمان د کنارنګی په منصب ټاکل شـوی و.

۱۴۹- NOBIXT (نوبخت)

پخوانی نوم دی، چې تر اسلامي پېر پورې هم د ايران د بيابانونو د خلکو په منځ کې پاتې و، لکه نوبخت اهوازی د عباسـي خليفـه منصـور منجم، چې نوبختي کورنۍ د علومو ژباړونکې وه(۱) ابو سهل نـوبختي د عباسيانو د دورې له مشهورو کسانو څخه و(۲)

ښايي دا نوبخت ايومن د کوشاني شهنشـاه وزيـراعظم و، چـې د پاچا او د هغه په فرمان به په سلطنتي منصبونو ګومارنې کېدې او پر يـوه بله ټوټه تيره، چې د سره کوتل په کيندنوکې راوتلې، همدا نوم په همدې املاء شته.

۱۵۰- AM (ام = يم) وګ: ۱۳۷، ۱۴۱، ۱۵۲.

۱۵۱- MIHRAMAN (مهره من)

د بغلان معبد د بيا رغونې د پـلاوي بـل غـړی او د نوکـونزوک د مرستيال نوم، چې د (O) فاصلې په واسطه له مخکې او وروسته څخه جلا شوی دی، په دې اړه چې ځينې پخواني آريايي القاب اوخاص نومونه په (من) ختم دي، په ۱۴۸ لمبر کې شرح ورکړی شوه، دا (من) په پښتو کـې

۱ - الفهرست ۲۵۱.

۲- تاريخ ادبيات فارسي از براون ۱، ۶۲۸.

تر اوسه د نسبت، اتصاف او اضافت له ادواتو څخه شته دی، لکه بریمن (بری + من = فاتح)، (کږ + من = معیوب) دا نوم هم دوه جزه لري، یو مهر چې په ۱۳۸ لمبر کې مې شرح کړ او د لمر په معنی پارسي مهر او پښتو (مېر) له هغه پاتې دي، چې له هغه څخه مقصد روښنايي، رڼا او ځلا ده. که هغه د اتصاف او نسبت له ادواتو (من) سره ونښلو (مېره من) کېږي، یعنې روښانه او ځلاند.

په پښتو کې د (مېره من) = (مهرمن) کلمه تر اوسه د درناوي د لقب په ډول د اغلیو، شخصیت لرونکو او د کورني ریاست وړ ښځو لپاره پاتې ده؛ نو ښايي، چې همدا کوشاني تاريخي مهرمن وي، چې په ښه توګه د لطيفې ډلې ښه صفت کېدای شي، یعنې هغه ښځه، چې د رڼا او ځلا درلودونکې ده او ښايي دا کلمه يې پخوا نارينه و ته هم کاروله. دا معنوي تحول يا د کلمې تخصيص کټ مټ، لکه شا = شها = شهی دی، چې د همدې ډېرليک په ۱۰ لمبر کې له کوشاني امپراتور لپاره سره راغلی؛ خو په پښتو ادبياتو کې د محبوبې لپاره احتراماً لقب دی او د لطيفې ډلې محترمه او لوړه مرتبه بيانوي.

احمدشاه بابا په یوه بیت کې دا دواړه کلمې د خپلې محبوبې لپاره احتراماً راوړې دي او وايي:

زما دله درد منده
شها زموږ مېرمن ده
که هر څو ځیرک مرغه یې
خلاص به نسې له کمنده[1]

۱۵۲- AM (ام - یم) وګ: ۱۳۷، ۱۴۱، ۱۵۰.

۱۵۳، ۱۵۴- BORZOMIHR = PCHR (برزو مهر پوهر)

برزو مهر هماغه ۱۳۸ لمبر کس دی، چې شرح يې ورکړی شوه؛ خو ۱۵۴ کلمه پوهر = پور = پسر ده، چې په ۵۵، ۱۴۰ لمبر کې مې شرح ورکړې ده او د برزو مهر پوهر معنی ورکوي: برزو مهر پور، چې نوم يې په وروستۍ کلمه کې راغلی دی.

پته دې نه وي، چې د بغلان د ډبرليک په اصل کې د ۲۵ کرښې په منځ کې تر ۱۵۴ پوهر کلمې وروسته د لاسليک ځانګړی طغرا په داسې بڼه چې د ډبرليک په انځور کې ليدل کېږي او همدارنګه تر وروستۍ کلمې وروسته د امهره من يوه نښه په بله بڼه راغلې (چې دا دواړه نښې د ډبرليک په انځور کې ليدلای شئ).

د دې ډول ځانګړو نښو په اړه داسې ګومان کېږي، چې د هغه وخت مخورو، مشاهيرو او پاچاهانو هر يوه د خپل مقام لپاره د سمبول په توګه ځانګړې نښې درلودې، لکه چې تر کانيشکا وروسته د ځینو

۱- د احمد شاه بابا دیوان، ۲۸۸، کابل چاپ ۳۱۹ ش.

کوشاني پاچاهانو پر سکو ځانګړې نښـې لیـدل کېـږي، چـې پـه قـوي احتمال پاچاهي سمبولونه او د پاچاهانو د لاسلیکونو طغراګـان دي. لـه هغې ډلې څخه د کانیشکا پر سکه (۱۲۵- ۱۵۲م) دا (        ) ځانګړې نښه ده کېنبل شوې ده.

د هیننګ د وینا له مخې داسې شخصـي او کـورني انځورونـه پـه ساساني پېر کې د ختیځ ایران په بیابانونو کې ډېر دود وو، چې د (نښـان) په نامه یادېدل.

۱۵۵- AMIHRAMAN (امهره من)(۱)

لکه د ۱۵۱ لمبر په څېر د بیا رغونې د کومېټې له غړو څخـه د یـوه کس نوم دی، چې د پلار نوم یې برزو مهر مخکې په ۱۳۸ او ۱۵۳ کې یاد شو او هغه یې دلته (برزو مهرزاده امهره من) لیکلی دی، خو دا امهره من د برزو مهر زوی به له مخکی یـاد شـوي ۱۵۱ لمبـر مهـره مـن پرتـه وي. څرنګه چې د بیا رغونې په کومېټه کې دوه کسه پـه یـوه نامـه وو، نـو دا وروستی( امیره من بن برزو مهر) یې د پلار پـه نامـه تشـخیص او تـوپیر کړی دی؛ خو دا چې یو A د وروستي نامه په پیل کـې ورزیـات شـوی علت یې معلوم نه دی. ښایي د تکرار د توپیر یا خـاص ګرامـري حالـت لپاره وي.

څرنګه چې مخکې نغوته وشوه تر دې نامه وروسته ځانګړې نښه کېنبل شوې او ډېرلیک پرې پای ته رسېږي.

۱- د دې کلمې املاء په دویمه نسخه کې: AMIORAMAN.

اوس له ۱۳۷ تر ۱۵۵ پورې د عبارت ژباړه ولولئ:

((ام بوررزو مهر، ام کوزګاشکی پوهر، ام استیل ګانسـیګییم نوکـو نزیکي کرل رنګی ماریګ))

((زه یـم بـرزو مهـر، زه یـم کوزګاشـکی زاده، زه یـم رئـیس ګانسیګییم؟ نوکونزیکی د ماریګ له کنارنګانو څخه))

پد خوا دی فرومان، اوت ایومن نوبخت، امهره من.

((ام بوزر و مهر پوهرا مهره من. (د خـدای پـه فرمـان او د ایـومن نوبخت (په فرمان). زه یم مهره من، زه یم برزو مهر پور امهره من))

(( دا دی د نېکمرغه کنشکا معبد: بغلان. چې (هغه) لـوی نومیـالي پاچا کنشکا( جوړ) کړ.

بیړه وشوه او سم له واره دا معبد بشپړ شو. تر هغه چـې (پـه پـای کې له دې) معبد اوبه ورکې شوې. (او) داسې (دا) معبـد بـې اوبـو( وچ) ودرېد( شو) او (څرنګه) د اور سپېڅلی نړېک خدایګوتې وځنډېد.

نو د نوښاد خدای لمانځونکی پوپنا شـول( لاړل). څرنګـه چـې د اوبو لنبتي ودرېدل( وچ شول نو) اوبه کمې شوې او معبد پای ته ورسېد.

تر څو نوکونزوک کنارنګ خدای ګومـارلی( د خـدای لـه لـوري مقرر) د فغفور پاچا (خدای زی پاچا) لویک بوسر شیزو ګـرګ اروانښـاد، چې تل دې نومیالی وی، د اوبو کښـي پـه پیـاوړې اراده د پاچـاهی پـه یودېرشم کال، نیسان میاشت(وری) مهال بغلان ته راغی او دا معبـد یـې وپاله، تر دې چې یو څاه یې وکینده او اوبـه یـې تـرې راوایسـتې او پـه

بنسټ کې یې ورته تیږې ولګولې، د معبد دا اوبه پوره شوې او کمې نه شوې او څرنګه چې د اور نېکمرغه او سپېڅلی خدایګوتی وي؛ نو د نوښاد خدای لمانځونکي به پوپنا نه شي او معبد به پرېښودی نه شي. (نو څرنګه) چې یې په هغه خام څاه کې خښتې ولګولې، کلکه شوه.

په دې څاه( او) په دې خښتو لګولو ټول معبد ښه وپالل شو او یو څاه او لوی غولی یې (جوړ) کړل.

زه برزو مهر یم. زه کوزګاشکي پور یم. زه رئیس ګانسیګییم یم(؟):

نوکونزوکي کنارنګ ماریګ، په فرمان د خدای او (په فرمان) د ایمن نوبخت، زه مهره من یم. زه برزو مهر پور امهره من یم))

## د بغلان ډېرلیک له پښتو ژباړې سره

اِید مَالیز م کنیشکُو اَنند : بَګ لَنګ
دا دی معبد د کانیشکا نېکمرغه: بغلان
سِید ی بَګ شا کَنیشکِی نامُو بَرګ کِرد
چې هغه لوی پاچا کنیشکا وکړ( جوړ کړ)
تا دِی اُوکِید فُوردَ مسس مالِیز فرُو گِرد
توندي وشوه سم له وراه(دا) معبد بشپړ شو
تادئي مندر آب نیست اوخوت، اسید مالیز
تر هغه چې(له دې) مندر (معبده) اوبه ورکې شوې، دارنګه( دا) معبد



آب آبګ ستاد اُود کَلد اَس لرُو هُو مِیَن یِ
بې اوبو پورته( شو) او څرنګه چې د ښېګڼې د سپېڅلي خدای ګوتی
اِیر ستاد، تاد ی بَګِیَس ی نُو شالم فروُخورَ تیند
اور ودرېد، نو خدای لمانځونکي د نو شاد خپارهٔ شول
تاد آب لرَافُو اَستِیند، آب اَندیز
څرنګه چې د اوبو لښتي ودرېدل(وچ شول) اوبه لږې شوې
اُوت مالِیز پِیدُو رِیګد تاکَلد نُوکُونزوک یِ
او معبد پای ته ورسېد، تر هغه چې نوکونزوک
کَرَل رَنګ یِ فرِی یِ خوَدِی وُګ، کِید فرِی اِستار
کنارنګ تر ټولو لوی خدای، چې پالونکی( ویشونکی؟)
آب شا یِ بَګ پُوهر یِ لُویخ بُوسَر یِ شِیزُو ګَرګ
د اوبو د فغفور پاچا لویک بوسر شیزو ګرګ
یِ الُوښال، کید فَرُو وِیسپ اَنُو توکیو برګان!
ارواښاد، چې تل دې نومیالی وي!
وُسُوګد مَنګ پید یِ اِیوګ اُودُو هِیرس
با اراۀ مهیا، په یو دېرشم (کال) د
خشُون، نِسیان ما مال، اګادواَن بَګ لَنګ.
پاچاهي، وخت د نیسان میاشت، راغی بغلان (ته).
تادِیی مالِیز پُوروګَت تادِیی اِیِی ساد کَند،



او دا معبد یې وپالۀ. تر دې چې یو څاه یې وکیندۀ،
اُوت یِی آب اُوز وَست ، اُوت یِی پید اَسَنګی اِتهـ
او له هغه یې اوبه راوویستې، او د هغه بنسټ یې په تېرو
اُو یِ لیرد اَتَن آب مالِیز فَرُوکرن، آب مَګاوِیِی
کلک کړ. (څرنګه چې) اوبه د معبد پوره شوې، اوبه کمې نه شوې
اُود کُلدَن اس لرُو هُو مِیَنن یِ اِپر بُویِی، تا دَن
او څرنګه چې د ښبګڼې سپېڅلې خدای ګوټی د اور وي، نو
یِ بَکِییَس یِ نُوشالم ما فرُو خُو شُوند یِی اُوتَن
خدا لمانځونکي د نوشاد به خپارۀ نه شي. او
مالِیز ما پِیدوُ رِیخس یِی، اُوت یِی اَسَسکوم ساد
معبد به ختم نه شي، څرنګه چې یې په هغه خام څاه
اَخشت رِیګ کِرد، اَلبَرګ اُستادُو اِتهواُت پِدِین
کې خښتې ولګولې بنیادور ایستاده شو. په دې
ساد پِدِین اَخشت رِیګ هَرُوهګ مالِیز خُوهز پُورُووَت
څاه (او) په دې خښتو لګولو ټول معبد ښه وپالل شو
اُوت اِیِی م ساد اُود مَشت خِرګُومَن کِرد
او یو څاه او لوی غولی یې وکړ (جوړ کړ)
اَم بُور زُو مِهر اَم کُوز ګاشکِی پُوهر اَم اَستِیل
زه یم بور زو مهر ، زه یم د ګوزګاشکي زوی. زه یم رئیس

ګانسِیګِییَم (۱) نُوکُونزِیک یِ کَرَل رَنګِی مارِیګ
ګانسیګییَم (؟) نوکونزیک کنارنګ ماریک
پِید یِ خوَ دِی فرُو مان، اُوت اِیِی مَن نُوبخت
په فرمان د خدای، او (په فرمان) د ایمن: نَو بَخت
اَم مِهرامَن اَم بُور زُومِهر پُوهر (۲) اَمهر امن (۳)
زه یم مهر من. زه یم بوزرو مهر پور امهر من

۱ - د دې جملې مانا بندې پوه نه شوم
۲- تر دې کلمې وروسته ځانګړې نښه شته دی.
۳- ځانګړې نښه

## د بغلان ډبرلیک په لاتیني او پښتو لیکدود له انګلیسي ژباړې سره

EID MALIZ M KAN ĔŠKO – ANIND BAG LANG SID I BAG ŠA
شا بگ ی سید لنگ –بگ اَنِند - کنیشکو م مالیز اید
۱-THIS IS ACROPOLE OF KANEŠKO THE AUSPICIOUS: BAG- LANG WHICH GREAT KING

KAN ĔŠ KI NAMOBARG KIRD TADI OKED FORDAMS MALIZ FRO
فرو مالیز فوردمس اوکېد تادی کرد نامو برگ کنیشکی
۲-KANISHKI THE FAMOUS BUILT HASTE (WAS) DONE INSTANTLY ACROPOLE (WAS)

GIRD TADĔI MANDAR AB NISTOKHOT ASID MALIZ AB ABG
آبگ آب مالیز اسید نیست اوخوت آب مندر تادیی گرد
۳-COMPLETED TILL THE MANDAR S WATER DISPPEARD THUS ACROPOLE PARCHED

STAD OD KALD AS LROHOMINAN IEIR STAD TAD I BAGEAS
بگییس ی تاد ستاد ایری لرو هومینن اس کلد اود ستاد
۴-STOOD AND WHEN THE HOLY DEITY OF THE FIRE STOOD (WANT OUT) AFTER THAT THE GODS LOVE

AS I NOSALM FRO KHRTIND TAD AB LRAFO ASTIND
استیند لرافو آب تاد فرو خورتیند نوشالم ی اس
۵-OF THE NOSAL PERISHED. WHEN THE WATER STREAMS STOOD (STOPPED)



AB ANDĔZ OT MALIZ PID RIGD TAKALD NOK
نوک تاکلد پید ورگید مالیز اوت اندیز آب
۶-WATER WAS SEARCE AND ACROPOLE WAS ABANDONED. AFTER THAT NOKONZOK

KONZOK I KARAL RANG I FRE I KHOADĔOG KID FREISTA
فرې استار کید خودی وگ ی فرې ی کرل رنگ ی کونزوک
۷-THE KARAL RANG ONBEHALF OF THE EMPEROR WHO (IS) DISTRIBUTOR

AB ŠA I BAG POHR I LOIKH BOSAR I ŠIZOGARG I A
ی شیزوگرگ بوسر لویخ ی پوهر بگ ی شا آب
۸-THE WATER OF GREAT KING LOKH BOSAR SON OF SIZOGARG THE

LOŠKHAL KID FAROWISP ANOMO - WAD BARGAN O
برگان انومو واد فروویسپ کید الوښال
۹-LATE WHO (MAY) ALWAYS (BE) CELEERATED I (HE BY)

SOGD MANG PID I IOG ODOHIRS KHŠON NEISAN MA
ما نیسان خشون اودوهیرس ایوگ ی پید منگ و سوگد
۱۰- READY MIND IN FIRST (AND) THIRTY (YEARS) OF THE ERA OF EMPIRE (IN) NEISAN'S MONTH

A MAL AGADOAN BAG LANG TADĔ I MALIZ PO
مالیز تادیی لنگ بگ اگادوان مال
۱۱-TIME SETTELED BAG LANG TILL (THE) ACROPOLE



ROGAT TADĔI EI I SAD KAND O T ĔI AB OZ WAST

وست اوز آب اوت یی کند ساد ایی تادیی پوروگت

۱۲-PROSPERED AFTER THAT (HE) ONE WELL DUG AND FROM IT WATER (WAS) UP PRODUCED

O TĔI PID ASANGEIHT OI LIRD ATAN AB MALIZE

مالیز آب اتن اوی لیرد اسنگی اتهـ پید اوت یی

۱۳-AND HE BY STONE'S BASE ERECTED (THE WELL) THUS WATER OF ACROPOLE

ARO KARAN AB MAGAO E I OD KALDAN AS LRO

لرو اس کلدن اود مگاویی آب فرو کرن

۱۴-(WAS) ABUNDANT (WHEN) WATER WAS NOT ECARCE AND THEN THE HOLY

HOMINAN I EIR BO ĔI TADAN I BAGEAS IN O S

نو ی بگییس ی تادن یی بو ابر ی هومینن

۱۵-DEITY OF THE FIRE WILL BE HERE AFTER THAT THE GODS – LOVERS OF THE NOSAL

ALM MAFRO KHOAŠONDĔI OTAN MALIZ MAPID

ماپیدو مالیز اوتن ما فرو خوشوندیی شالم

۱۶-MAY NOT PERISHED. AND ACROPOLE MAY NOT BE

O RIKHSĔI OTĔI ASASKOM SAD AKHŠT

اخشت ساد اسسکوم؟ اوت یی ریخس یی

۱۷-ABANDONED WHEN THE CRUDE BUILT WELL WAS



RIG KIRD ALBARG OSTADO I THOAT PID

پدین استادو اتهوات آلبرگ کرد ریگ

۱۸-BRICK BASED ( IT WILL BE) BASIC STAND BY

EIN SAD PIDEIN AKHAŠT RIG HAROHG MAL

ما- هروهگ اخشت ریگ پدین ساد

۱۹-THIS WELL ( AND ) BY THIS BRICK- BASiS ALL ACROPOLE

LIZ KHOHZ POROWAT OT EI I M SAD OD M

اود ساد م ایی اوت پورووت خوهز لیز

۲۰-( WAS ) BEST PROSPERED AND ONE WILL AND

MAŠT KHIR GOMAN KIRD AM BORZOMIHR AM KO

ام بوزومهر ام کرد خر گومن مشت

۲۱-GREAT FORE COURT (HE) BUILT (I) AM BORZOMIHR. (I) AM SON

Z GAŠKI POHR AM ASTIL GANSEIGIAM NOK

گانسیگییم؟ استیل ام کوزگاشکی پوهر

۲۲-SON OF KOZGSKI. (I) AM OFFICER OF GANSEIGIAM!

ONZIK I KARAL RANG E MARĔG PID I KHOADĔ F

خودی ی پید نوکونزیک ی کرل رنگی ماریگ

۲۳-NOKONZIKI THE KARAL RANGE OF THE MAREG: BY THE KINGS

FROMAN OT EI I O MAN NOBIKHT AM MIHRA MAN

مهرامن ام نو بخت ایی من اوت فرومان

۲۴-FIRMAN AND (BY) FIRMAN OF) EIIOMAN NOBIKHT. (I) AM MIHRAMAN



